


د پوهنې وزارت



# پښتو

## نهم ټولګی

## (د دري ژبو لپاره)



پښتو

نهم ټولګی (د دري ژبو لپاره)

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هـ. ش.



# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی — دا عزت د هر افغان دی
کور د سولې کور د تورې — هر بچی يې قهرمان دی
دا وطن د ټولو کور دی — د بلوڅو د ازبکو
د پښتون او هزاره وو — د ترکمنو د تاجکو
ورسره عرب، گوجر دي — پاميريان، نورستانيان
براهوي دي، قزلباش دي — هم ايماق، هم پشه يان
دا هېواد به تل ځلېږي — لکه لمر پر شنه آسمان
په سينه کې د آسيا به — لکه زړه وي جاويدان
نوم د حق مو دی رهبر — وايو الله اکبر وايو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحيم




# پښتو

## نهم ټولګی

## (د دري ژبو لپاره)

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هـ. ش.



# د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** پښتو

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د پښتو ژبې او ادبیاتو څانګې علمي او مسلکي غړي

**ایډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د ایډیټ د څانګې غړي

**ټولګی:** نهم (د دري ژبو لپاره)

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:**

**چاپخونه:**

**بریښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af



## د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنگه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د گران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراگانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږگوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنگه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توگه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې گران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او گټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانگه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه گټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو گډونوالو په توگه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وگړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي



# فهرست





# حمد



- تاسې د مخه کله حمد لوستلی یا اورېدلی دی؟
- د حمد لیکلو یا ویلو اصلي هدف څه وي؟

حمد په لغت کې ثنا او صفت ته وایي او په اصطلاح کې هغه منظومه وینا یا کلام دی چې د الله ﷻ ستاینه او ثنا پکې راغلې وي.

د پخوانیو او اوسنیو شاعرانو د شعرونو په دیوانونو او ټولګو کې داسې شعرونه پیدا کولای شو چې د الله ﷻ ثنا او صفت ته ځانګړي شوي دي. په دغه ډول شعرونو کې په ډېره خوږه ژبه د خدای ﷻ ثنا او صفت بیان شوی دی. موږ د دې ټولګي د لوست پیل د ((احمد کلاچوي)) په حمدیه شعر کوو.

# حمد

الـهـي هـسـې شـــان راکـــړې مـحبـت ستا
چــې پــه هـــره ســا کــوم ثـنـا صـفـت ستا
سـتـا ثـنـا پــه خـولـه ویـل د زړه خـوښـي ده
پــه دا رنــګ ثـنـا صـفـت دی پـر لـذت ستا
سـيـال دې نشته بـاري خـدايـه لاشـريـك يې
پـه اخـــلاص کـلـمـه وايـــم د وحـــدت ستا
خـدای مې تـه يې چې خالق د کـل عالم يې
هـم ايـمـان مـې دی راوړی پـه حـضـرت ستا
نـبـيـان واړه دا سـتـا حـق دي، مـا منلي
فـرښـتـې، هـم کـتـابـونـه، هـم قـيـامـت ستا
لــه هـغـه دښـمـنـه مـا لــه امـــان راکـــړې
چـې لعنت پـرې وايـه کـېـږي هـر سـاعـت ستا
هــم ايـمــان مـې لــه زوالـــه پــه امـــان کـړې
لـه ايـمـان سـره مـې بـوځـې پـه عـزت ستا
ګـنـاهـونـه مـې د حـد لـه شـمـاره تـېـر دي
لـيـکـن ډېـــر امـيـد لـــرم د مـغـفـرت ستا
پـه حـرمـت د پـاك رسـول چـې عاليشان دی
خـپـل ديـــدار کــه رانـصـيـب پــه عـنـايـت ستا
د احــمــد تــوفـيــق هـېـڅ نـشـتـه د ويـلـو
مـګـر ښـه ويـــل يـې وکـــړل پــه هـمـت ستا
(احمد کلاچوي)

احمد کلاچوي د کوزې پښتونخوا يو معاصر شاعر دی

د متن لنډیز:

خدایه! ماته ستا دومره مینه او محبت په زړه کې راکړې چې تل ستا په صفت او ثنا مشغول شم. ستا ثنا له هر څه غوره او بهتره ده. ته واحد او لاشریک خدای یې، سیال او مثال دې نشته. د ټولو مخلوقاتو خالق او پیدا کوونکی یې، ستا ټول رالیږلي نبیان او پیغمبران، آسماني کتابونه او فرښتې حق دي، موږ منلي او ایمان مو پرې راوړی دی. خدایه! موږ ته له ستر دښمن شیطان څخه چې تا شړلی، رټلی او لعنت دې پرې ویلی، امن راکړې. موږ ډېر ګناهګار یو، ستا فضل او کرم ته هیله من یو چې زموږ دا بې شمېره ګناهونه په خپل فضل او کرم راوبښې.




۱ـ زده کوونکي دې متن په چوپه خوله ولولي، بیا دې هر زده کوونکی په نوبت سره د حمدیه شعر یو یو بیت په لوړ غږ د ټولګي په وړاندې ولولي. ښوونکی دې د اړتیا په وخت کې لازمه مرسته ورسره وکړي.

۲ـ زده کوونکي دې پر تختې لیکلي لغتونه او د هغو معناوې په خپلو کتابچو کې ولیکي او هغه دې په مناسبو جملو کې وکاروي.

۳ـ د ټول متن د مفهوم په باب چې څومره پوهېدلي یاست، هغه په خپله ژبه ووایئ.

٤ـ زده کوونکي دې د کتاب د متن له مخې د دې بیتونو تش ځایونه په پنسل سره ډک کړي:

۵_ د جملو دغه تش ځایونه ډک کړئ :

- حمد هغه منظومه وینا د ه چې د............. ستاینه او ثنا پکې را غلي وي.
- ټول پیغمبران.................. کتابونه او فرښتې حق دي.
- الله ﷻ! ته د ټولو مخلوقاتو...........یې

۶_ یو زده کوونکی دې دا لاندې بیت پر تختې ولیکي اونور زده کوونکي د ې د هغه معنا او مفهوم په ساده توګه ووایي.

له هغه دښمنـــــــه مـــا له امـــان راکړې
چې لعنت پرې وایه کبرې هر ساعت ستا

۷_ یو زده کوونکی دې یو بیت د املاء په توګه ووایي او نور زده کوونکي دې هغه په خپلو کتابچو کې ولیکي، بیا دې هماغه بیت د یوه زده کوونکي له خوا پرتختې ولیکل شي، نور زده کوونکي دې خپله لیکنه ورسره وګوري او خپلې تېروتنې دې سمې کړي.

- یو زده کوونکی دې د آسماني کتابونو نومونه واخلي او بل دې د هغو پیغمبرانو نومونه واخلي چې دا کتابونه پرې نازل شوي دي.
- زده کوونکي دې د پیغمبرانو د دندو په هکله څو کرښې ولیکي او بیا دې څو تنه خپله لیکنه نورو ټولګیوالو ته ولولي.




زده کوونکي دې د کورنۍ دندې په توګه د الله ﷻ د ځینو هغو نعمتونو په هکله چې خپلو بندګانو ته یې ورکړي دي، څو کرښې ولیکي او په راتلونکي پښتو لوست ساعت کې دې یې د ټولګیوالو په وړاندې ولولي.



دويم لوست

# د اسلام ستر پيغمبر حضرت محمد ﷺ

شاعران او ليکوال د اسلام د ستر پيغمبر ﷺ ستاينه په خوږه ژبه په نظم او نثر کې په يو ځانګړي ډول کوي.

د شعر يا نثري ليکنې دغه ډول ته نعت يا نعتيه وينا وايي.

مونږ او تاسې د دې ټولګي په دويم لوست کې په نثر ليکلې نعتيه ليکنه لولو.

- د اسلام د ستر پيغمبر حضرت محمد ﷺ ستاينه زياتره په نظم کې وي، کله مو په نثر کې هم لوستلې ده؟
- د حضرت محمد ﷺ له دوران څخه مخکې نړۍ په څه مصيبتونو اخته وه؟

د دنیا پر مخ هرې خوا ته د ناپوهۍ، وېرې او وحشت لړې خپرې وې. بشریت په بې شمېره خرافاتو او واهموکې راګیر و، خلکو انساني فضیلتونه او انساني کرامت هېر کړي وو.

په کعبه شریفه کې د لوی خدایﷻ د عبادت او لمانځلو ځای د بتانو لمانځلو نیولی و او په پراخه توګه یې رواج موندلی و. انسانانو او ټولنې اصلاح، سمون او عدالت ته پوره ضرورت درلوده. د نړۍ پر مخ په دغسې حالت کې د بني هاشمو د کورنۍ د عبدالمطلب د زوی عبدالله په کور کې حضرت محمدﷺ وزېږېد.

کله چې دغه نوراني بشر پیدا شو، نو د خدایﷻ نور یې په سترګو کې ځلېده او په همدغه نور یې شاوخوا د ظلم تیارو ته په ډېرې حیرانۍ کتل او د خلکو د باطلو عقیدو، رسمونو او رواجونو او فکرونو تیاره ګوټو نه یې لیدل. څومره چې رالوېده د خلکو په بدمرغیو پوهېده او د هغو اصلي لاملونه ورته معلومېدل. حضرت محمدﷺ که په سفر کې و او که په خپل کلي کور کې، که یو وخت په شپانه توب بوخت و او که بل وخت یې بیا سوداګري کوله، نو د خلکو په دغه بدحالت او بدمرغیو ډېر ځورېده. له هغه سره تل د دغه حالت او ناپوهۍ د له منځه وړلو او د بشریت د ژغورلو فکر و. د خدایﷻ دغه غوره بنده له کوچنیوالي څخه تر ځوانۍ او بیا پاخه عمر ته د رسېدو تر وخته په خبرو او عمل کې د ده صداقت، غوره اخلاقو، خیر غوښتنې، لوړ همت، زغم او ډېر عالي شخصیت دوست او دښمن حیران کړي وو. هر چا ته منلی و او د ((امین)) په درانه لقب یې بللی و. خدایﷻ چې خپل دا نازولی بنده د کوم ستر مسؤولیت او مهم کار د سرته رسولو له پاره پیدا کړی و، هغه د ده په فکر او عمل کې څرګندېدل، خو ده په دې باب چاته څه نه ویل او دا راز یې له ځان سره ساتلی و. کله چې یې عمر څلوېښتو کلونو ته ورسید، د لوی خدایﷻ له خوا پرې د جبرائیلؑ په وسیله وحې راغله او په پیغمبرۍ مبعوث شو. حضرت محمدﷺ د حق دین ته بلنه پیل کړه. هغوی چې د ده په حقانیت او شخصیت باور درلود، سمدلاسه یې د ده بلنه ومنله او ایمان یې پرې راوړ. کومو خلکو چې د دنیا مال، قومي او قبیلوي تعصبونو او غرور یې د باطن سترګې ړندې کړې وې اود انسانانویه حقونویې سترګې پټولې، په ګمراهۍ کې پاتې شول. د لوی خدایﷻ په مرسته او د قران کریم له معجزې ډکو أیتونو په اغیزو سره د اللهﷻ استازي د کفر او شرک کمپله ټوله کړه او د اسلام حق دین یې خپور کړ او د ټول بشر حقوق یې روښانه کړل او د

هغوی د ورکړې ملا تړ یې وکړ.

د اسلام مقدس دین په ډېر لږ وخت کې داسې پرمختګ وکړ چې د نړۍ د دینونو په تاریخ کې یې ساری نه لیدل کېږي. نه یوازې د عربو لویو وړو قومونو، قبیلو او شاوخوا ملکونو، بلکې د جهان ګوټ ګوټ ته د دې حق دین زرینې پلوشې ورسیدې. همدې مقدس دین د بشریت د دواړو جهانونو نېکمرغي تضمین کړې.

الٰهي! د خپل نازولي پیغمبر حضرت محمد ﷺ د سپیڅلي روح په برکت زموږ په زړونو کې د بې اتفاقۍ او کرکې اورونه مړه کړې، هېواد ته مو سوله او سوکالي راولې چې موږ خپل هېواد او نور بشریت ته د خدمت جوګه شو.

د متن لنډیز:

هغه مهال چې پر ټول جهان د جهالت او ناپوهۍ تپه تیاره خپره وه، بشریت په بې لارۍ او ګمراهۍ سر و، د حق او باطل تر منځ یې توپیر نشو کولای، د خدای ﷻ د لمانځنې او عبادت ځای بت لمانځنې او ډول ډول خرافاتو نیولی و، انسانیت له یوې لویې تباهۍ سره مخامخ و، خدای ﷻ پر بشریت رحم وکړ، د هغوی د لارښوونې او سمې لارې ته د رابللو لپاره یې حضرت محمد ﷺ د خپل استازي په توګه وګوماره. د بشریت لپاره یې د دواړو جهانونو د نېکمرغۍ زیری راوړ او له بې لارۍ څخه یې وژغوره.




۱ـ زده کوونکي دې د ښوونکي له خوا تر متن لوستلو او لازمو ځرګندونو وروسته متن په چوپتیا سره ولولي. بیا دې له ځینو زده کوونکو څخه وغواړي چې متن د ټولګي په وړاندې په لوړ غږ ولولي. نور زده کوونکي دې غوږ ونیسي.

۲ـ یو زده کوونکی دې په خپله خوښه د ټولګي په وړاندې د متن یو پاراګراف ولولي، بل زده کوونکی دې په خپله خوښه په ټولګي کې معنا کړي. ښوونکی دې د اړتیا په وخت کې مرسته وکړي.

۳ـ زده کوونکي دې د لوست هغه لغتونه چې ښوونکي پر تختي لیکلي او معنا کړي دي، په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا دې په جملو کې وکاروي.

٤ـ ځینې زده کوونکي دې د لوست عمومي مفهوم ټولګیوالو ته په خپله ژبه ووایي.

٥ـ ښوونکی دې له زده کوونکو وپوښتي چې:

- حضرت محمدﷺ په څه ډول حالاتو کې په پیغمبرۍ مبعوث شو؟
- حضرت محمدﷺ بشریت ته څه راوړل؟

٦ـ زده‌کوونکي دې دوه، دوه تنه په خپل منځ کې د حضرت محمدﷺ په ژوند او سیرت باندې د پوهېدو د ارزښت په هکله خبرې وکړي، بیا دې یو تن د نورو په استازیتوب د خپلو خبرو نتیجه ټولګیوالو ته ووایي.

- څو زده‌کوونکي دې په وار سره ووایي چې د اسلام ستر پیغمبر حضرت محمدﷺ د انسان د حقونو په اړه څه لارښوونې کړې دي.
- یو زده‌کوونکی دې د متن یو پراګراف نورو ټولګیوالو ته د املاء په توګه ووایي او هغوی دې ولیکي، بیا دې هر زده کوونکی خپله لیکنه له نوموړي پراګراف سره پرتله کړي.




زده کوونکي دې د حضرت محمدﷺ د ژوند او سیرت په اړه څو کرښې ولیکي. په بل ساعت کې دې یې د ټولګي په وړاندې ولولي.



دریم لوست

# له هېواد سره مینه



- خلک ولې له خپل هېواد سره مینه لري؟
- هر چا ته خپل وطن کشمیر دی، دا متل څه معنا لري؟

هغه وګړي چې په یوه جغرافیایي سیمه کې اوسي، ګډ کلتور او تاریخ لري، یو ملت بلل کېږي.

د ټول ملت ټاټوبي ته هېواد وايي. افغانستان یو هېواد او اوسېدونکي يې یو ملت دی، د دې ملت نوم افغان دی. په دې لوست کې له خپل هېواد او ټاټوبي سره په مینه خبرې کوو.

پر هر چا خپل هېواد او ټاټوبی ګران دی او مینه ورسره لري او د هېواد ټول اوسېدونکي قومونه سره وروڼه او یو د بل مټ او بازو دي.
د هوا مرغان هم له خپلو ځالو سره چې کور او وطن يې بلل کېږي، مینه لري. له همدې امله هره ورځ له خپلو ځالو څخه الوځي، په شنو باغچو او سمسورو باغونو کې مېوې خوري، د ګلو پر ځانګو ګرځي، خو خپل کور نه هیروي او بېرته خپلو ځالو ته ځکه راځي چې دوی هم زموږ په څېر له خپل کور او ځالې سره مینه لري. د مېنې او کور مینه د هر چا په زړه کې وي او خپل هېواد په هر چاګران دی. د یوه هېواد اوسېدونکي په خپل وطن کې د اوسېدلو او زده کړې حق لري.
زموږ ګران هېواد افغانستان د هر افغان په زړه کې ځای لري او مینه ورسره لري، تر دې چې خپل سر او مال ترې ځاروي، خوېوه لوېشت ځمکه یې چا ته نه پرېږدي، لکه چې یو شاعر وايي:

**خپله خاوره به په خپلو وینو پالم          که حاجت يې قرباني زما د تن شي**

هېواد د ګرانې مور غوندې دی. د هېواد رښې اوبه د مور د شیدو غوندې سپینې او خوږې وي. هېواد د اولاد په څېرموږ په خپله غېږه کې لویوي. همدا لامل دی چې هېواد راباندې ګران دی او پرې له سر او مال څخه تېر یو. د هېواد دا سپیرې خاورې زموږ د پلرونو او نیکونو هډوکي دي چې موږ ورته په درنه سترګه ګورو. موږ چې په دې هېواد کې لوی شوي یو او په اوبو او هوا، غلو او دانو یې ژوند کوو، پر موږ دومره حق لري، لکه یو زړه سوانده او مهربانه مور چې یې پر خپل اولاد لري. موږ د دې ګران هېواد د سپېڅلې خاورې هغه نیالګي یو چې خزان او پسرلی مو یو دی.، ښه او بد، غم او ښادي مو شریک دي. د یوه افغان په نامه یادېږو او یو له بله په هېڅ ډول نه بېلېږو، ټول یو او واحد ملت یو. ټول باید د خپل هېواد د ودانۍ او د خلکو د سوکالۍ لپاره لومړی زده کړه او بیا کار وکړو چې هېواد مو ودان او هېوادوال مو سوکاله شي.ددې وطن هر اوسېدونکی له رنګ، ژبې، قوم او سمت له توپیر پرته حق لري چې دلته و اوسي اود هېواد له ټولوامتیازونونه برخمن وي اود هغوی په مقابل کې خپل مسؤولیت سرته ورسوي. مثلا ټول نرینه او ښځې زده کړې وکړي اوپه ګډه خپل هېواد ودان کړي اود هېواد په پاکوالي اوسمسورتیا کې عملي ګامونه پورته کړي.

د متن لنډیز:

هغه خلك چې د ګډ فرهنګ او ګډ تاریخ په لرلو په یوه جغرافیایي سیمه کې اوسېږي، دغه د اوسېدلو سیمې ته هېواد یا ټاټوبی ویل کېږي. زموږ د افغانانو د استوګنې سیمه افغانستان نومېږي. هر څوك چې په افغانستان کې اوسېږي او د افغانستان تابعیت لري، افغان بلل کېږي. ټول افغانان له خپل هېواد او ټاټوبي سره مینه لري. د دفاع او ساتنې لپاره یې هر ډول سرښندنې ته چمتو دي.

موږ باید د خپل هېواد د رښتینو بچیانو په توګه د هېواد د ودانۍ او خلکو د سوکالۍ لپاره هر اړخیزې هلې ځلې وکړو.




۱ـ څو زده کوونکي دې د لوست متن ولولي، نور زده کوونکي دې د کلمو تلفظ ته پاملرنه وکړي.

۲ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د لوست د مفهوم په هکله خبرې وکړي، نور زده‌کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.

۳ـ یو زده کوونکی دې د نورو په استازۍ د متن څو جملې ولولي، نورزده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د املاء په توګه ولیکي.

- بل زده کوونکی دې هماغه جملې د کتاب له مخې پر تختې ولیکي، نور زده کوونکي دې د هغې له مخې خپلې غلطۍ سمې کړي.
- یو زده کوونکی دې پرتختې دغه جمله (هېواد پر موږ ګران دی...) ولیکي نور زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې هغې ته انکشاف ورکړي او بیا دې څو تنه خپلې لیکلې جملې نورو ټولګیوالو ته ولولي.

٤ـ زده کوونکي دې په وار سره خپل ځان معرفي کړي او ودې وايي چې په راتلونکي کې به هېواد ته څه خدمتونه وکړي.

- ځو زده کوونکي دې په وار سره د هېواد د مينې د اهميت په هکله خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونيسي.

٥ـ زده کوونکي دې په ترتيب سره د لوست سخت لغتونه ووايي، بل دې معنا پر تختې وليکي، بل زده کوونکی دې ترې جمله جوړه کړي.

٦ـ زده کوونکي دې متن په چوپه خوله ولولي او پنځه صفتونه دې پکې نښه کړي. په خپلوکتابچوکې دې يې وليکي او په جملوکې دې وکاروي.

٧ـزده کوونکي دې په ځوکسيزو ډلوکې د لاندې پوښتنود ځوابونو په هکله خبرې وکړي.

- هېواد کومې جغرافيايي سيمې ته وايي؟
- مورږ ولې له خپل ټاټوبي سره مينه لرو؟
- هېواد پر مورږ کوم حقونه لري؟
- الوتونکي او ځاروي ولې له خپل استوګنځي يا ځالې سره مينه لري؟

٨ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. د يوې ډلې ځو زده کوونکي دې په وار سره د بلې ډلې زده کوونکو ته يوه جمله ووايي، هغه دې يې په منفي او سواليه جمله بدله کړي.




زده کوونکي دې په خپلو کتابچوکې له هېواد سره د مينې په هکله ځوکرښې وليکي ، په بل درسي ساعت کې دې خپلو ټولګيوالو ته ووايي.



ځلورم لوست

# د ښځو حقونه

- د نړۍ نوميالي د چا په غېږ کې روزل شوي دي؟
- ښځې کوم حقونه لري؟

له بده مرغه چې په ډېرو ټولنو کې د ښځو پر وړاندې توپير موجود دی. دغه توپير د ناوړو عنعنو او نالوستۍ پر بنسټ ولاړ دی.

د همدغو توپيرونو له کبله د ښځو حقونه تر پښو لاندې کېږي او له ښځو سره له زور زياتي او تاوتريخوالي نه کار اخيستل کېږي.

په دې لوست کې د ښځو پر ځينو هغو حقونو بحث کوو چې له نرينه سره يو شان ترې برخمنې دي.

ښځې د هر هېواد او ټولنې نيمايي بشري برخه جوړوي. له همدې امله د دوی حقونه د بشر د حقونو ډېره مهمه او ستره برخه ده. که د بشر تاريخ ته وګورو، ښځو له نرينه وو سره د کور، کورنۍ، ټولنې او هېواد د اجتماعي چارو په سرته رسولو کې ارزښتناکه برخه اخيستې ده. د نړۍ نوميالي د همدوی په غېږو کې روزل شوي او پالل شوي دي.

د اسلام په سپېڅلي دين کې د ښځو حقونو ته پوره پاملرنه شوې ده. د اسلام د مقدس دين له ظهور او خپرېدو څخه د مخه په عربستان او د نړۍ په نورو هېوادونواو ټولنو کې د ښځو حقونو ته په مناسب او لازم اهميت قايل نه وو. د هغوی په وړاندې به ډېر بد چلند کېده. په سپکه سترګه به ورته کتل کېدل. د سوداګرۍ د مال په شان به پلورل کېدلې او اخيستل کېدلې. ډېر زور زياتی به ورسره کېده. کله چې د اسلام دين راغی، په الهٰي احکامو کې په قاطعيت سره له ښځو سره د هر ډول زور زياتي او ناوړه سلوك د پای ته رسولو حکمونه وشول.

د ښځې حقيقي ځېره يې ځرګنده کړه. الله ﷻ ښځه هم د نرينه په شان د ټولو فرضي عبادتونو په سرته رسولو مکلفه ګرځولې ده.د نرينه په شان يې د مالکيت حق ورکړی دی. کولی شي سوداګريزې چارې هم سمبال کړي. د علم زده کړه يې هم په ښځه او نر يو شان فرض او لازمي ګرځولې ده. اسلام ښځو ته دا حق ورکړی چې په کور، کورنۍ، ټولنې او هېواد پورې د مربوطو مسايلو په هکله خپل نظر ځرګند کړي او په اجتماعي فعاليتونو کې پوره برخه واخلي.

همدارنګه د نړۍ په کچه د بشر د حقونو په نړيواله اعلاميه، نورو نړيوالو تړونونو او کنوانسيونونو کې هم د ښځو د حقونو په هکله ډېر تاکيدونه شوي دي.

له ښځو سره د هر ډول تبعيض او توپير د له منځه وړلو په نړيوال تړون کې راغلي دي چې ښځې له نرينه وو سره په اجتماعي، اقتصادي او سياسي فعاليتونو کې د برخې اخيستلو برابر حقونه لري. د بشر د حقونو نړيواله اعلاميه په ۱۹۴۸م. کال د دسمبر په لسمه د ملګرو ملتونو د عمومي ټولنې له خوا تصويب شوه، په هغې کې د ښځو لپاره ټول مدني حقونه تثبيت شوي دي. په دغو حقونو کې د فکر او بيان أزادي، د زده کړې آزادي، د مطبوعاتو او معلوماتو آزادي، د غونډو او ټولنو جوړولو او نورې آزادۍ شاملې دي.

دغې اعلامیې ښځو ته له نرینه ووسره برابر ټول سیاسي حقونه هم ورکړي دي. په دغو حقونو کې د یوې ځوکۍ یا د بېلابېلو برخو د مشرۍ لپاره د انتخابېدو او انتخابولو حق یا په بله وینا د رای اخیستلو او رای ورکولو حق شامل دی. اعلامیې ښځو ته د نرینه وو په شان اقتصادي، ټولنیز او کلتوري حقونه او آزادۍ هم ورکړي دي. ښځې ته هم په زده کړې، کار، کلتوري او هنري خلاقیتونو، ټولنیزو او په اقتصادي فعالیتونو کې د ګډون حق ورکوي.

له دې سره سره چې له یوې خوا د اسلام سپیڅلي دین ښځو ته له نرینه وو سره یو شان حقونه ورکړي دي او د بشر د حقونو نړیوالې اعلامیې او کنوانسیونونو او په هر هېواد کې ملي قوانینو هم د ښځو د حقونو په اړه ډېر ټینګارونه او تاکیدونه کړي دي، بیا هم وینو چې د نړۍ په زیاترو هېوادونو او ټولنو کې ناوړو عنعنو او موجودو توپیرونو له ښځو څخه بېلا بېل حقونه په لږه یا زیاته پیمانه غصب کړي دي. هغوی له خپلو ډېرو حقونو څخه بې برخې کېږي او ورته په سپکه سترګه کتل کېږي. هغه هېوادونه چې د بشر د حقونو نړیواله اعلامیه او نور مربوطه کنوانسیونونه یې منلي او لاسلیک کړي دي، په دې مکلف دي چې هغه عملي کړي. ښځو ته باید خپل ټول حقونه چې په دغو معتبرو سندونو کې تثبیت دي، ورکړي.

زموږ په هېواد کې کلونه کلونه د نامناسبو ټولنیزو شرایطو او ناوړو عنعنو او د ښځو په وړاندې د ډول ډول تبعیضونو د شته والي له امله د ښځو حقونه تر پښو لاندې شوي او له ډېرو حقونو څخه بې برخې شوي دي، خو اوس په هېواد کې داسې لارې چارې برابرې شوي چې ښځو ته د هغو حقونه ورکړل شي اود هغو په مقابل کې هر ډول تبعیضونه له منځه یوړل شي.

**د متن لنډیز:**

ښځه د هرې ټولنې او بشري نړۍ نیمه برخه جوړوي، نو ځکه یې حقونه هم د بشري حقونو لویه او مهمه برخه ګڼل کېږي. د اسلام سپیڅلي دین هم د ښځو حقونو ته پوره پاملرنه کړې او په دې هکله په قرآن کریم کې ډېر الٰهي احکام او په نبوي حدیثونو کې ډېرې لارښوونې موجودې دي. د بشري حقونوپه نړیواله اعلامیه او نورو سندونو کې هم دغه حقونه تثبیت او پرې ټینګار شوی، خو ډېر ځله د نړۍ په بېلا بېلو ټولنو کې له پیړیو راهیسې د مسلطو عنعنو له مخې د هغوی حقونه غصب کېږي او په سپکه سترګه ورته کتل کېږي. ښځه چې د بشریت او ټولنې نیمه برخه ده، نو باید حقونو ته یې درناوی وشي او له خپلو حقونو څخه بې برخې نشي.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې په خپل وار سره د متن یو یو پاراګراف ولولي.
۲ـ یو یو زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راوبلل شي چې د متن د مفهوم په هکله خبرې وکړي.
۳ـ زده کوونکي دې د ښوونکي له خوا پر تختې لیکلي لغتونه او د هغو معناوې په خپلو کتابچو کې ولیکي او هغه دې په مناسبو جملو کې استعمال کړي.
٤ـ زده کوونکي دې په څلور کسیزو ډلو وویشل شي چې په خپل منځ کې د ښځو د حقونو په هکله بحث وکړي او نتیجه یې ولیکي، یو تن دې هغه د خپلې ډلې په استازیتوب د ټولګي په وړاندې ولولي.
٥ـ زده کوونکي دې په وار سره دغه پوښتنې ځواب کړي:

- ښځې ولې د ټولنې نیم وجود ګڼل کېږي؟
- د اسلام دین له راتګ څخه د مخه ښځو ته په کومه سترګه کتل کېدل؟
- اسلام ښځو ته کوم حقونه ورکړي دي؟
- د بشر د حقونو په نړیوالې اعلامیې کې ښځو ته کوم حقونه ورکړل شوي دي؟
- ولې په ځینو سیمو او ټولنو کې ښځو ته خپل حقونه نه ورکول کېږي؟

٦ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي. یوه ډله دې د هغو حقونو لېست جوړ کړي چې د اسلام سپیڅلي دین ښځو ته ورکړي دي. بله ډله دې د هغو حقونو نومونه ولیکي چې د بشر د حقونو په نړیواله اعلامیه کې یې یادونه شوې ده. بیا دې د هرې ډلې زده کوونکي په خپل وار سره د حقونو لیکلی لېست د ټولګي په وړاندې ولولي.
۷ـ زده کوونکي دې د لاندې کلمو متضادې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي او په مناسبو جملو کې دې استعمال کړي:

۱ـ ستر ۲ـ سپېڅلی ۳ـ سپک ٤ـ ډېر ٥ـ بد



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د کورنۍ د غړو یا نورو کلیوالو او مشرانو په مرسته د داسې یوې پیښې په اړه معلومات ولیکي چې د ښځو حقونه پکې غصب شوي یا تر پښو لاندې شوي دي، په بل راتلونکي درسي ساعت کې دې هغه معلومات د ټولګیوالو په وړاندې ولولي.



پنځم لوست

# فعل: د جملې مهمه برخه




ژبه له بېلا بېلو غږونو څخه جوړه شوې ده چې له همدغو غږونو څخه بیا کلمې او له کلمو څخه عبارتونه او جملې جوړېږي.

دغه راز له همدغو کلمو څخه نومونه، ضمیرونه، صفتونه، فعلونه او قیدونه هم جوړېږي.

تاسو په تېرو ټولګیو کې د نومونو ځینې ډولونه ولوستل، په دې ټولګي کې به د فعل ډولونه په لنډ ډول وپېژنئ:

ـ که چېرې په یوه جمله کې فعل رانه ورل شي، څه ستونزې به رامنځ ته شي؟

فعل هغه کلمه ده چې په یوه وخت کې د یو کار یا یوې پېښې په کېدو یا د یوه حالت په راڅرگندېدو دلالت کوي.

فعل ډېر ډولونه لري.دلته یې ځینې در پېژنو.

لومړی_ د معنا له مخې د فعل ډولونه:

په پښتو ژبه کې فعلونه د معنا له مخې په دوو ډولونو وېشل شوي دي :

لازمي او متعدي فعلونه

لازمي هغه فعل دی چې په جمله کې یوازې فاعل ته اړتیا لري او مفعول نه غواړي،

لکه: پلوشه لاړه. زیرک راغی.زه ځم.موږ ځو.

متعدي هغه فعل دی چې په جمله کې پر فاعل سربېره مفعول هم وغواړي، لکه :احمد محمود وواهه، احمد زه ولیدم او داسې نور.

د زمانې په لحاظ د فعل ډولونه :

په درې ډوله د ی : تېر مهال فعل، اوس مهال فعل او راتلونکی فعل

## ۱_ تېر مهال فعل

دا هغه فعل دی چې د یو کار د ترسره کېدو یا د یوې پېښې له پېښېدو څخه په تېره زمانه کې معلومات راکوي چې ځینې ډولونه یې په لا ندې ډول دي.

مطلقه ماضي، استمراري ماضي، نژدې ماضي، لیرې ماضي.

مطلقه ماضي: هغه ده چې لیرې والی او نژدېوالی یې نظر اوسنی زمانې ته معلوم نه وي.

لکه: ما لیک ولیکه، ما کمیس واغوست.

یا په کلمه باندې د ځیې په بدلون سره لکه :زه خملاستم، زه کښېناستم.

## استمراري ماضي

هغه ده چې په تېر وخت کې د یو کار په کېدلو یا د یوې پېښې د پښېدو استمرار او دوام وښیي لکه:

ما خټکی خوړ، تا خط لیکه او نور.

نژدې ماضي:

هغه ده چې د یوه کار د کېدو وخت حال زمانې ته نژدې وي چې نقلي ماضي هم ورته وايي، لکه:

زه ورغلی یم، موږ ورغلي یو، دوی ورغلي دي او نور.

لېرې ماضي:

هغه ده چې د یوه کار کېدل یا د یوې پېښې پېښېدل پکې له حال زمانې څخه لرې وي.

لکه: مالیدلې وه، تا لیدلې وه، زه راغلې وم، موږ راغلي وو.

۲ـ حال فعل:

حال فعل په اوسني وخت کې د یو کار یا یو وخت په ترسره کېدو دلالت کوي، لکه: زه لیکم، زه لوست وایم، دوی ځي، دوی وايي او نور.

۳ـ مستقبل فعل:

دا هغه فعل دی چې په راتلونکي وخت کې د یوه کار یا د یوې پېښې په سرته رسولو دلالت وکړي.

مستقبل له اوس مهال فعل څخه د((به)) په زیاتولو سره جوړېږي، لکه:

زه به ولیکم، ته به ولیکې، دوی به وخوري، تاسې به راشئ.

د متن لنډیز

په دې لوست کې مو فعل او د هغه په ډولونو خبرې وکړې، ومو ویل چې فعل په یوه ټاکلي وخت کې د یوه کار یا یوې پېښې په کېدو یا د یوه حالت په راڅرګندېدو دلالت کوي.

فعل د معنا له مخې په دوه ډوله دی:

لازمي فعل او متعدي فعل

فعل د زمانې له پلوه په درې ډوله دی.

ماضي فعل، حال فعل او راتلونکی فعل



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې یو ځل متن په چوپتیا سره ولولي. بیا دې څو تنه په لوړ اواز په داسې ډول متن ولولي چې نور زده کوونکي د کلمو تلفظ ته متوجه شي.

۲ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي. یو زده کوونکی دې د فعل نوم ووایي او د بلې ډلې زده کوونکی دې هغه فعل په حال زمانه کې بل زده کوونکی دې په ماضي زمانه کې او بل دې په راتلونکې زمانه کې په جمله کې استعمال کړي.

۳ـ څو زده کوونکي دې د فعل د ارزښت په هکله خبرې وکړي.

ـ د یوې ډلې زده کوونکي دې د څو لازمي فعلونو نومونه واخلي او د بلې ډلې زده کوونکي دې هغه پر تختې په جمله کې استعمال کړي.

ـ وروسته دې د بلې ډلې زده کوونکي د متعدي فعلونو نومونه واخلي، د بلې ډلې زده کوونکي دې هغه په جمله کې استعمال کړي.

٤ـ زده کوونکي دې په خپله خوښه د زمانې په لحاظ څو فعلونه په خپلو کتابچو کې ولیکي، بیا دې د ټولګیوالو په مخ کې ووایي او په ارزښت دې یې خبرې وکړي.

٥ـ زده کوونکي دې لاندې نیمګړې جملې په خپلو کتابچو کې سمې کړي او بیا دې د ټولګي په مخ کې د هرې جملې ناسمه او سمه بڼه زده کوونکو ته ووایي.

زه کورته تللی وو، زه په خپلو کتابچه لیک نشو لیکلی، زده کوونکي ښوونځي ته راغی، موږ به سبا ته ښوونځي ته لاړ شم، ما خوړلې وه ډوډۍ په کور کې.

٦ـ داسې جملې په خپلو کتابچو کې ولیکئ چې په هغو کې فعل د تېرې او راتلونکې زمانې له پلوه استعمال شوي وي او بیا هغه جملې د ټولګي په مخ کې ووایئ.

ـ یو زده کوونکی دې په خپله خوښه یو فعل په یوه زمانه کې استعمال او ولیکي. څو زده کوونکي دې په خپله خوښه نومورې جمله په بله زمانه کې د تختې پر مخ ولیکي.

۷ـ یو زده کوونکی دې پر تختې څو جملې ولیکي. یوه ډله زده کوونکي دې هغه په خپلو کتابچو کې په منفي جملو واړوي او بله ډله دې هغه جملې په خپلو کتابچو کې په سوالیه جملو واړوي، بیا دې د ټولګیوالو په وړاندې ووایي.



## کورنۍ دنده

هر زده کوونکی دې په خپله خوښه په هره زمانه کې څو جملې ولیکي او په بل درسي ساعت کې د خپلو ټولګیوالو ته ووایي.



شپږم لوست

# مبارکه خرقه

ـ تاسې کله د مبارکې خرقې نوم اورېدلی؟

ـ له دې خبر یاست چې د حضرت محمدﷺ مبارکه خرقه اوس چیرې ده؟

خرقه په اصطلاح کې هغه لباس او جامه ده چې له ډول ډول ټوکرانو څخه جوړه شوې وي، د چینې په څېر اوږده لستوڼي لري، درویشان او صوفیان یې اغوندي. دلته موږ د اسلام د ستر پیغمبر حضرت محمدﷺ مبارکه خرقه درپېژنو چې د لوی احمد شاه بابا په وخت کې کندهار ته راوړل شوې ده.

د اسلام د ستر پیغمبر حضرت محمدﷺ مبارکه خرقه چې اوس د کندهار ښار په یوې ودانۍ کې خوندي ده، د تاریخي روایاتو له مخې دا هماغه خرقه ده چې رسولﷺ حضرت ویس قرني ته وربښلې وه.

دغه خرقه د امیر تیمور گورگاني د واکمنۍ تر مهاله په عراق کې وه. کله چې نوموړی د عراق په نیولو برلاسی شو، مبارکه خرقه یې له هغه ځایه د خپلې امپراتورۍ مرکز سمرقند ته راوړه، یوه ودانۍ یې ورته جوړه کړه او څو تنه سادات یې د هغې متولیان مقرر کړل او د دغې سیمې مالیه یې هغوی ته وقف کړه.تر۱۰۷٤هـ.ش. کال پورې په سمرقند کې وه په نوموړي کال کې ابوسعید اوغلان چې د گورگانیانو له کورنۍ نه د شرقي ترکستان حکمران و، نوموړې خرقه شریفه یې ترکستان ته راوړه اوتر ۱۱۰۹ هـ. ش. پورې په بلخ کې وه.په نوموړي کال کې دوو تنو محمد رضا او شیخ محمد نیازغوښتل چې د چترال له لارې یې هند ته یوسي. د بدخشان والي د هغوی په نیت خبرشو دغه چپنه یې ونیوه په همدغه کال یې د بدخشان د جورگن په ښار کې یې ورته د ساتلو لپاره ځای وټاکه، یوه ودانۍ یې ورته جوړه کړه.په همدغه نېټه نوموړی ښار د فیض آباد په نوم شو. بیا نوموړې خرقه شریفه د احمد شاه بابا د واکمنۍ پر مهال له بدخشان څخه کابل ته په اوښ باندې راوړل شوه، د کابل په علي آباد کې ورته ځای وټاکل شو، بیا له کابل نه د ربیع الاول په ۹ نېټه کندهار ته یووړل شوه.

په لاره کې به په هر پړاو کې خلک د هغې لیدو ته راټولېدل او په ډېر درناوي به یې لیدله. ډېرې ورځې پر لاره پرې ووتلې، تر هغو چې یې کابل ته راورسوله، ۹ میاشتې دلته په کابل کې خوندي وه اوخلک له ډېرو لرو ځایونو څخه د هغې لېدنې او زیارت ته ورتلل.

وروسته بیا د لوی احمدشاه بابا په حکم مبارکه خرقه د کندهار ښار ته یووړل شوه. هلته په هغې ښکلې قبا کې چې ورته جوړه شوې وه، کېښودل شوه. خرقه مبارکه تر ننه پورې په هغې ځانگړې ودانۍ کې چې د احمد شاه بابا د مقبرې ترڅنگ واقع ده، خوندي او خلک یې په ډېر درناوي زیارت ته ورځي.

**د متن لنډيز:**

د حضرت محمدﷺ مبارکه خرقه د لوی احمدشاه بابا په وخت کې کندهار ته راوړل شوې او اوس هلته په يوې ځانګړې ودانۍ کې خوندي ده. دا هماغه مبارکه خرقه ده چې د اسلام پيغمبر حضرت محمدﷺ ويس قرني ته وربښلې وه.

څه موده په عراق کې وه او بيا له هغه ځايه امير تيمور ګورګاني سمرقند ته راوړه اولادې يې د بدخشان فيض آباد ته راوړه او بيا احمدشاه بابا د خپلو سوبو په بهير کې کندهار ته راوړه چې تر اوسه هلته خوندي ده.




۱ـ زده کوونکي دې يو ځل لوست په چوپه خوله ولولي، بيا دې څو تنه زده کوونکي د لوست يو يو پراګراف د کتاب له مخې ولولي او نور دې ورته غوږ ونيسي.

۲ـ زده کوونکي دې دنده واخلي چې د مبارکې خرقې د ځای او راوړلو په باره کې څو کرښې وليکي او بيا دې هر يو خپله ليکنه ټولګيوالو ته ولولي.

ـ يو زده کوونکی دې يې پر تختې څو لغتونه وليکي، نورزده کوونکي دې پر تختې ليکل شوي لغتونه په خپلو کتابچو کې وليکي او په جملو کې دې وکاروي او بيا دې په ټولګي کې واوروي.

۳ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. له هرې ډلې څخه دې يو يو تن پورته شي او خپلو ټولګيوالو ته دې د مبارکې خرقې د راوړلو په هکله معلومات وړاندې کړي.

٤ـ ښوونکی دې له څو زده کوونکونه لاندې پوښتنې وکړي.

- مبارکه خرقه اوس چېرې ده ؟

ـ مبارکه خرقه څه ارزښت لري؟
ـ مبارکه خرقه له فیض آباد څخه څه ډول تر کندهار پورې راوړل شوه ؟
۵ـ له یوې ډلې څخه دې یو زده کوونکی د زده کوونکو د مسؤولیت او دندې په هکله خبرې وکړي.
ـ له بلې ډلې څخه دې څو زده کوونکي په ټولګي کې د نظم او دسپلین په ارزښت خبرې وکړي.

۶ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي:
یوه ډله دې له متن نه څو عام نومونه راوباسي او په خپلو کتابچو کې دې یې په جملو کې استعمال کړي او بله ډله دې له متن څخه څو خاص نومونه پیدا او په خپلو کتابچو کې دې په جملو کې استعمال کړي. بیا دې خپلو ټولګیوالو ته ولولي.

۷ـ زده کوونکي دې د کتاب له مخې د جملو تش ځایونه په خپلو کتابچو کې په مناسبو کلمو سره ډک کړي او بیا دې ټولګیوالو ته ولولي.
ـ په لاره په هر پړاو کې................ لیدو ته راټولېدل.
ـ خرقه شریفه................ میاشتې په کابل کې وه.
ـ خرقه شریفه اوس د................ ترخنګ ودانۍ کې خوندي ده.



## کورنۍ دنده

که د کلي او کور تر څنګ مو مشهور زیارت یا داسې مشهور ځای وي چې خلک یې لیدلو او درناوي ته ورځي، په اړه یې لس کرښې ولیکئ او په راتلونکي درسي ساعت کې یې خپلو ټولګیوالو ته ولولئ.



اووم لوست

# سوله او امن

که په کومه سیمه، ټولنه یا هېواد کې سوله او امن نه وي، وګړي به یې له څه ډول ستونزو سره مخ شي؟

سوله او امن د بشري ژوند د سوکالۍ او ټولنیزې پرمختیا لپاره ډېر ضروري دي. تر هغه چې په یوه ټولنه یا هېواد کې سوله نه وي، د خلکو ژوند به له ګواښ او خطر سره مخ وي. په دې لوست کې هغه لیکنه لولو چې د سولې د ارزښت او اهمیت په هکله پکې ډېر په زړه پورې معلومات وړاندې شوي دي.

سوله یوه ډیره مقدسه، سپیڅلې او ښکلې کلمه ده. مقدسه او سپیڅلي، خو ځکه ده چې په قرآنکریم کې یې ستاینه شوې او هغه یې خیر (و الصلح خیر) بللې ده. ښکلې ورته ځکه وایو چې د بشریت هستي، پایښت او سوکالي په همدې سولې پورې اړه لري.
په سوله کې ژوند کول د هر انسا ن حق د ی سوله د خلکو زړونه سره نژدې کوي. خوښي او نېمکرغي راولي. که د بشري نړۍ په هر ځای کې سوله او امن نه وي، معلومه خبره ده چې هلته به جګړه برلاسې او په جګړو کې انسانان د ژوند کولو حق له لاسه ورکوي او دا خو څرګنده ده چې جنګ جګړه انسانانو ته له تباهۍ، ځورونې، ړنګولو او له منځه وړلو پرته بل څه له ځان سره نه راوړي.
جګړه انساني تمدن له خاورو سره خاورې کوي او انسانان د اور په لمبو کې سوزوي. په وینو کې یې لمبوي، د ویر او ماتم پر ټغر یې کېنوي.
موږ چې کله د بشري تاریخ پاڼې را اړوو، نو پکې لولو: هغو خلکو چې په خپل منځ کې او هم له نورو سره د سولې، صفا، امن او سوله ییز ژوند لاره غوره کړې ده، د ترقۍ او پر مختګ له کاروان سره مله شوي او ډېر ژر د سوکاله او هوسا ژوند خاوندان شوي دي، خو هغه خلک او ولسونه چې په شخړو او جګړو کې په خپله کیوتلي او یا په یوه او بله بڼه د نورو له خوا جګړې او مقابلې ته اړیستل شوي دي، نیتجه یې مرګ، ژوبله، وېجاړتیا، فقر، بیوزلي او نورې ډول، ډول بد مرغۍ وي.
نو ویلی شو چې:
سوله د خیر ښېګڼې نوم دی چې ټولې مادي او معنوي ښېګڼې پکې پرتې دي.
سوله او امن د ژوند نوم دی، د بسیا، هوسا او سوکاله ژوند، چې هر ډول مادي او معنوي نېکمرغۍ ورسره ملګرې دي.په سوله کې د یوې ټولنې ټول وګړي له امتیازاتو پرته د زده کړې حق تر لاسه کوي .په زده کړې سره خپل او د نورو حقوق پیژني او د یو بل د حقوقو دفاع او ملاتړ کوي.
سوله د پرمختګ، آبادۍ او ښیرازۍ نوم دی چې هېواد او ټولنې ته د پرمختګ او هوساینې ځواک او واک ور په برخه کوي.
که سوله او امن نه وي، نو سر او مال مو خوندي پاتې کېدای نشي او نه په ډاډه زړه زده کړه او یا بل کار کسب کولی شو. موږ تر هر څه لومړی په خپل کور، کلي، سیمه او ټول هېواد کې سولې ته اړتیا لرو. د سولې او امن را منځ ته کولو او ساتلو لپاره باید هر ډول هلې ځلې وکړو او په دې لار کې هر ډول سربښندنې او زیارګالنې ته چمتو واوسو او ټول هېوادوال په ګډه د سولې او آبادۍ په کار کې ګامونه واخلو.

د متن لنډیز:

په دې متن کې څرګنده شوې چې سوله ډېره مقدسه او سپیڅلې کلمه ده او دا ځکه چې الله(ج) هغه په قرآن کریم کې خیر بللې ده. سوله د خلکو زړونه سره نژدې کوي، خوښي او نیکمرغي راولي. که سوله او امن نه وي، سر او مال به مو خوندي نه وي او نه په ډاډه زړه زده کړه او بل کار کسب کولی شو. د سولې او امن د رامنځ ته کولو او ساتلو لپاره باید هر ډول هلې ځلې وکړو او په دې لار کې هر ډول زیارګالنې او سربښندنې ته چمتو واوسو.




۱- زده کوونکي دې په وار سره متن په ټولګي کې نورو ټولګیوالو ته په لوړ غږ ولولي.
۲- یو زده کوونکی دې له متن څخه د خپلې خوښې یوه جمله پر تختې ولیکي، نور زده کوونکي دې په خپله خوښه د ټولګي په وړاندې د هغې معنا او مفهوم ټولګیوالو ته ووایي.
۳- زده کوونکي دې متن په غور سره ولولي او په هغه کې دې صفتونه پیدا او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي او بیا دې هغه په مناسبو جملو کې وکاروي.
٤- زده کوونکي دې په خپل وار سره د ټولګي په وړاندې د متن عمومي مفهوم په خپلو الفاظو کې ووایي.
۵- د دغو کلمو په وړاندې مترادفې او سره ورته کلمې لیکل شوې دي، په کرښو یې سره ونښلوئ:

| | |
|---|---|
| سپېڅلی | ماتم |
| خوښي | پرمختګ |
| وير | مقدس |
| ترقي | نېکمرغه |
| هوسا | سوکالي |

٦- له زده کوونکو څخه دې د دې لاندې پوښتنو په کولو سره پر لوست د پوهېدو ارزونه وشي، د دغو پوښتنو په ځوابولو کې دې ډېر زده کوونکي ونډه واخلي او هر یو دې په خپل خپل وار خبرې وکړي:

- سوله څه ته وايي؟
- جگړه څه ته وايي؟
- سوله څه گټې لري؟
- جگړه کوم زیانونه لري؟

۷-څو زده کوونکي دې د انسان د طبیعي او ذاتي حقونو نومونه واخلي چې باید ورکړل شي.

- څو زده کوونکي دې د جگړو د زیانونو په هکله خبرې وکړي.
- یوشمېر زده کوونکي دې د تعصب د زیانونوپه هکله خبرې وکړي.

۸ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، هره ډله دې په متن کې پنځه، پنځه فعلونه په حال، ماضي او راتلونکې زمانه کې وکاروي او بیا دې خپلو ټولگیوالو ته ووايي.

ـ څو زده کوونکي دې د فعلونو په گټه او ارزښت خبرې وکړي.

ـ څو زده کوونکي دې خپلو ټولگیوالو ته د یو داسې چا په هکله خبرې وکړي چې تعصب هغه ته زیان رسولی وي.

۹ـ یو زده‌کوونکی دې پر تختې د پرمختگ کلمه ولیکي، نور زده‌کوونکي دې له پرمختگ سره نژدې او اړوند کلمات ووايي او نومورې زده کوونکی چې د تختې ترڅنگ ولاړ دی، د پرمختگ تر کلمې لاندې دې ولیکي.




د جگړې د زیانونو او یا د سولې د گټو په اړه که مو کومه کیسه له چا څخه اورېدلې وي، لنډیز یې په څو کرښو کې و لیکئ او په راتلونکي درسي ساعت کې یې خپلو ټولگیوالو ته ووایئ.



اتم لوست

# د نیالګیو کېنول



ـ خلك ولې نیالګي کښېنوي ؟

ـ د ونو او بوټو کېنول څه ګټې لري؟

د ونو او بوټو په کېنولو نه یوازې دا چې موږ د هغو له سیوري، مېوو او لرګيو څخه ګټه اخلو، د چاپېریال په سمسورتیا، ښیرازۍ او ښکلا کې هم ستره ونډه لري. د چاپېریال سمسورتیا د هوا په پاکوالي او شنه والي او هم د خلکو پر روغتیا ښه اغېزه لري. د دې ترڅنګ هغه نیالګي چې نن یې موږ کښېنوو، زموږ راتلونکی نسل به ترې ګټه اخلي، لکه نن چې موږ د هغو ونو له مېوو، سیوري او لرګیو څخه ګټه اخلو چې زموږ پلرونو او نیکونو کښېنولي دي.

د پسرلي شپې ورځې او د کار وخت و. يو سپين ږيرى بزگر پر خپلو ځمکو گرځېده او نيالگي يې کښېنول. د سپين ږيري عمر ډېر زيات و، خو په هوډ او همت کې يې کمی نه و راغلی. هغه په دغه وخت کې هم کار کاوه او د نيالگيو په کښېنولو بوخت و.



د وخت واکمن پر آس سپور تېرېده چې سپين ږيرى يې وليد، نو خپله سپرلۍ يې ودروله او پوښتنه يې ترې وکړه:

بابا ستا عمر خو آخر ته رسېدلی دی، ته د دې ونې مېوه نشې خوړای او نه يې سيوري ته کېناستلای شي، نو ولې دا دومره زيار پر ځان گالې؟

سپين ږيري يې په ځواب کې وويل: پخوانيو زموږ لپاره نيالگي ايښي وو چې اوس يې موږ سيوري ته کېنو او مېوې يې خورو، اوس يې موږ بايد کېږدو چې راتلونکی نسل يې سيوري ته کېني او مېوه يې وخوري.

د واکمن دا خبره خوښه شوه او سپين ږيري ته يې څه پيسې د بخشش او انعام په ډول ورکړې. سپين ږيري وخندل او ويې ويل: د نورو خلکو نيالگي څو کاله وروسته ثمر ته رسېږي او مېوه نيسي، خو زما نيالگيو ډېره ژر مېوه ونيوله.

واکمن په دې خبره هغه ته نورې پيسې هم ورکړې. سپين ږيرى بيا په خندا شو، ويې ويل: د نورو خلکو نيالگي په کال کې يو ځل مېوه نيسي، خو زما نيالگيو په يوه ورځ دوه ځله مېوه ونيوله، نو زه به ولې نيالگي نه ږدم او په دې لار کې به زيار نه کاږم.

هو! موږ ته لازمه ده چې هر کال نيالگي کښېنوو او په هر موسم کې گلان وکرو او د هغوی ساتنه وکړو چې هم په سمسورتيا او ښکلا کې رول ولري او هم په روغتيايي برخه کې گټور وي . هغه څوک چې د ونو او بوټو سمسورتيا له منځه وړي او ونې بوټې پرېکوي بايد د هغوی په مقابل کې بې توپيره ونه اوسو، بلکې هغوی پوه کړو چې ونو او بوټو ته زيان ونه رسوي.

### د متن لنډيز:

په دې کیسه کې د یوه داسې سړي حالت بیان شوی چې په اصطلاح عمر یې خوړلی، د ژوند وروستي وختونه یې دي، خو بیا هم هغه په دې هیله او فکر کې دی چې اوسنی نسل باید داسې کار وکړي چې راتلونکو نسلونو ته یې ګټه ورسېږي. نیالګي وکري چې راتلونکي یې سیوري ته کیني او مېوه یې وخوري.واکمن چې د ده له دې کار او عمل څخه خوښ شو، دوه ځله یې د انعام په توګه پیسې ورکړې، سپین ږیری په دې ډېر وویاړېده چې کار او عمل یې د ده په ژوند هم مېوه ونیوله او پر راتلونکو نسلونو سربېره یې ده ته هم ګټه ورسېده.




۱ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، له هرې ډلې څخه دې څو تنه د لوست د مفهوم په اړه خبرې وکړي.

۲ـ له هرې ډلې څخه دې څو زده کوونکي د متن یو یو پراګراف ولولي، نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي او ښوونکی دې ورته تېروتنې سمې کړي.

۳ـ زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د لوست د کیسې لنډ مفهوم ولیکي او د ټولګیوالو په مخکې دې ولولي.

٤ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، بیا دې له هرې ډلې څخه یو یو زده‌کوونکی د کیسې په متن کې د سپین ږیري د عزم په اړه خپل نظر ووايي.

ـ څو زده کوونکي دې له کیسې څخه په ګټې اخیستنې سره د خپل عزم په اړه خبرې وکړي.

۵_ زده کوونکي دې لاندې پوښتنې ځواب کړي:

_ د نيالګيو کښېنول څه ګټه لري؟

_ سپين ږيري د څه لپاره نيالګي کښېنول؟

_ د سپين ږيري له خبرو څخه مو څه پايله تر لاسه کړه؟ خبرې پرې وکړئ.

٦_ که دغې کيسې ته ورته کيسه د چا زده وي، خپلو ټولګيوالو ته دې ووايي.

_ زده کوونکي دې په متن کې پنځه پنځه فعلونه پيدا کړي او په جملو کې دې وکاروي او بيا دې د ټولګيوالو په مخکې ولولي.

۷_ څو زده کوونکي دې ووايي چې کله يې په خپل انګړ او ځمکه کې نيالګي کښېنولي دي؟ خبرې دې پرې وکړي.

- زد ه کوونکي دې د چاپېريال دسمسورتيا دګټو په هکله خبرې وکړي.

- څوزده کوونکي دې ووايي چې که چېرې څوک د چاپېريال په خرابی کې ګام پورته کوي دهغوی په وړاندې د نورو خلکو مسؤوليت څه دی؟

۸- څو زده کوونکي دې له دې وروسته د نيالګيو دکښېنولو په هکله د خپل تصميم په هکله خبرې وکړي.

- ښوونکی دې له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي چې د نيالګيو وهل څه زيانونه لري؟

-يوه ډله زده کوونکي دې د نيالګيو د ګټو په هکله څوکرښې په مشوره سره وليکي او بله ډله دې د چاپېريال د ښه ساتلو په هکله څو کرښې په شريکه وليکي بيا دې د هرې ډلې يو استازی نوروټولګيوالوته ووايي.




زده کوونکي دې په خپل کور کې له خپل پلار څخه د نيالګيو د کښېنولو د ارزښت په اړه پوښتنه وکړي او هغه معلومات دې په خپله کتابچه کې وليکي او په بل درسي ساعت کې دې ټولګيوالو ته ولولي.





# تاريخي باغونه

- تاسو په خپل هېواد کې د کومو تاريخي باغونو نومونه اورېدلي دي؟
- ستاسو په نظر تاريخي باغونه څه ارزښت لري؟

زموږ په هېواد کې د تاريخ په اوږدو کې ډېر ښکلي او ښايسته باغونه په مرکز او ولايتونو کې جوړ شوي دي چې هر يو يې په خپل وخت کې خپل اهميت او ارزښت درلود. دا باغونه زياتره اوس له منځه تللي دي او ډېر لږ تاريخي باغونه په خپل شکل او لږ بدلون سره پاتې دي. په دې لوست کې به د يو شمېر تاريخي با غونو په اړه معلومات درکړو.

زموږ هېواد د تاريخ په اوږدو کې ډېر ښکلي، ښايسته اوسمسور باغونه درلودل چې ډېر يې اوس له منځه تللي دي چې يوازې نومونه يې پاتې دي، لکه: په کابل کې باغ بالا، باغ نور، بنفشه باغ، نوروزي باغ، خلوت باغ، د شهرآرا باغ، د جلوه خانې باغ، د صدر خانې باغ، د مهتاب باغ او داسې نور. زموږ په ګران هېواد کې د باغونو د جوړېدو تاريخ د تيموريانوله وخت څخه پيل شوی دی. اوس په هېواد کې د تيموريانو د وخت با غونه له منځته تللي دي چې پر ځای يې نورې ودانۍ جوړې شوي دي. دغه راز د باغ علي مردان او باغ قاضي په نومونو مو هم باغونه درلودل چې اوس د هغو باغونو په ځای کې کورونه او ودانۍ جوړې شوي دي او يوازې د بابر تاريخي بڼ تر اوسه شته چې د کابل په ګذرګاه کې دی. د بابر مړی هم په دې باغ کې ښخ شوی دی. دغه راز د علم ګنج باغ و چې د نوموړي باغ پرځای د اميرعبدالرحمٰن خان په امر حربي فابريکه جوړه شوې ده. د کابل د اوسني مخابراتو وزارت تر څنګ هم يو باغ و چې چار باغ نومېده، خو اوس يې پر ځای نورې ودانۍ جوړې شوې.

دغه راز مو په ولايتونو کې هم زيات شمير باغونه درلودل، خو اوس له منځه تللي او پاملرنه ورته نه ده شوې اوداکار بايد شوی نه وای، ځکه چې باغونه د چاپېر يال په سمسورتيا او ابادۍ کې ډېرګټور دي او ملي پانګه ده. له تاريخي روغو باغونو څخه يو هم په جلال آباد کې د امير شهيد باغ دی چې دا باغ د امير حبيب الله خان په امر جوړشوی دی چې د نارنجو ونې پکې دي، يو جامع جومات هم لري او د همدغه جومات ترڅنګ د امير حبيب الله خان او اميرامان الله خان قبرونه دي.

د همدغه باغ په شمال کې د سراج العمارت باغ دی چې خلک مېلو ته ورځي او شرق خوا ته يې د کوکب باغ دی چې د اميرحبيب الله خان په وخت کې جوړ شوی دی.
په ننګرهار کې يو بل تاريخي باغ هم شته چې تر دغو باغونو زيات تاريخي لرغونتوب لري او هغه د مېملې تاريخي باغ دی چې په ۱۰۵٦ هـ. ق. کال د شعبان په مياشت کې د شاه جهان پاچا په امر جوړ شوی دی. دا باغ د شاه جهان له نقشې سره سم آباد شوی دی. هماغه د صبر ونې او چنارونه

اوس هم پکې ولاړ دي. هر ډول ونې پکې شته او د نرگس گلان یې سیمه ییز شهرت لري. موږ په هېواد کې ډیر تا ریخي باغونه د رلود ل ، خو د وخت په تېرېدو سره ورته پام نه د ی شوی، له منځته تللي اواوس یې پر ځا ی یا دکرنې ځمکې جوړې شوي دي اویا خو کورونه پکې جوړ شوي دي. با غونه هم د سیموپه سمسو رتیا اوهم د خلکو د بدني او ذهني تفریح لپاره ډیره گټه لري. موږته په کار ده چې خپل تاریخي باغونه وساتو او هم نور باغونه جوړ کړو او هم نورهېواد وال د داسې باغونو جوړولو ته وهڅوو. زموږ د کرنې وزارت هم باید د داسې باغونو ساتنه او پالنه وکړي او هم د نورو باغونوپه جوړولو کې کار وکړي او هغه څوك چې د خپل چاپېریال کې ونې پرېکوي، باید د هغوی مخه ونیسو او په وړاندې یې بې توپیره پاتي نه شو، ځکه چې د چاپېریال ښیرازه له منځه وړي. که چېرې زموږ هېوادوال د پسرلي په موسم کې یو یو نیالگی کېنوي او هغه ته اوبه ورکړي، نو د دې هیله کېدای شي چې موږ به هر کال په هېواد کې د میلونونو، میلونونو مېوه دارو او غیر مېوه دارو ونو لرونکي شو.

د لوست لنډیز:

زموږ په هېواد کې د باغونو د جوړولو د پیل وختونه د تیموریانو تر وخته رسېږي. له نوموړي وروسته د بېلا بېلو پاچاهانو په وخت کې باغونه جوړ شوي دي چې اوس یې یوازې نومونه پاتې دي. اوس موږ یوازې د گوتو په شمېر باغونه لرو چې د سیمو خلك میلو ته ورځي، خو په ټول هېواد کې یو تاریخي باغ چې د شاه جهان پاچا په وخت کې جوړ شوی، تر اوسه روغ رمټ پاتی دی هغه د مېملې تاریخي باغ دی.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې یو ځل د کتاب متن په چوپتیا سره ولولي، بیا دې له هرې ډلې څخه یو تن پورته شي او د متن مفهوم دې په خپلو خبرو کې ووايي.

۲ـ یو زده کوونکی دې پورته شي، د هغو باغونو نومونه دې واخلي چې اوس له منځه تللي دي، بل زده‌کوونکی دې د هغو باغونو نومونه واخلي چې اوس خلک مېلو ته ورځي.

۳ـ ځو زده کوونکي دې د باغونو د اهمیت او ارزښت په هکله نورو ټولګیوالو ته خبرې وکړي.

٤ـ ځو زده کوونکي دې د مېوه لرونکو ونو ګټې بیان کړي او ځو دې د بې مېوې ونو ګټې ټولګیوالو ته ووايي.

٥ـ یوه ډله زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د هغو مېوه لرونکو ونو نومونه ولیکي چې په تودو سیمو کې کېږي او بیا دې نوموړي نومونه په جملو کې وکاروي.

ـ یوه ډله زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د بې مېوو ونو نومونه ولیکي او په خپلو کتابچو کې دې يې په جملو کې وکاروي.

٦ـ ځو زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د مېوه لرونکو ونو نومونه ولیکي او بیا دې په جمع نومونو واړوي او په جملو کې دې وکاروي.

۷ـ ځو زده کوونکي دې په وار سره پورته شي، باغونو ته د تګ او لیدنې په هکله دې خبرې اترې وکړي.

ـ ځو زده کوونکي دې په باغونو کې د ګلانو، ونو او پارکونو د ساتنې په هکله خبرې وکړي.

ـ ځو زده کوونکي دې له دې وروسته د باغونو د جوړولو او یا ساتلو په هکله د خپل تصمیم په اړه خبرې وکړي.

۸ـ یو زده کوونکی دې د یو باغ د جوړولو د ارزښت په هکله خبرې وکړي.نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي، بیا دې ځو زده کوونکي په وار سره د لومړني زده کوونکي خبرې تکرار کړي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د کورنۍ له کوم مشر څخه په هېواد کې د کوم باغ د لیدنې په هکله پوښتنه وکړي. د مشر خبرې دې ولیکي او بیا دې د هغه مشر خبرې په ټولګي کې نورو ټولګیوالو ته په بل درسي ساعت کې واوروي.



لسم لوست

# عبدالقادر خان خټک



- تاسې د خوشحال خان خټک د کورنۍ د ادبي خدمتونو په اړه څه اورېدلي دي؟
- د خټکو په کورنۍ کې له خوشحال خان خټک پرته د کومو شاعرانو او ليکوالو له نومونو سره اشنا ياست؟

په يوولسمې او دولسمې هجري پيړيو کې خوشحال خان خټک او د هغه د کورنۍ غړيو (زامنو او لمسيانو) پښتو ژبې او ادب ته د ستاينې وړ خدمتونه کړي دي. دوی د نظم او نثر کتابونه ليکلي اوپښتو ادب يې ډېر شتمن کړی دی. د خوشحال خان خټک په زامنو کې خو تنه ډېر نوميالي شاعران تېر شوي دي، له هغو څخه يو يې عبدالقادر خان خټک دی.

عبدالقادر خان خټک د پښتو ژبې د نومیالي شاعر، لیکوال او ملي مبارز خوشحال خان خټک زوی و. په ۱۰۶۳ هـ. ق. کال د پېښور د اکوړه خټک سیمې په سرای نومي کلي کې زېږېدلی و.
زده کړې یې د خټکو د علمي او فرهنګي کورنۍ په چاپېریال کې ترسره کړې وې او له راپاتې لیکلو آثارو څخه یې دا معلومېږي چې په خپل وخت کې لوی عالم او شاعر و.
د دیني او ادبي علومو ژوره او پراخه مطالعه یې درلوده او د استادۍ تر پوړه رسېدلی و.
د عبدالقادر خان خټک د ژوند د حالاتو په باب ډېر معلومات په لاس کې نشته، هغه څه چې د نوموړي له خپلو آثارو او د هغې زمانې د نورو لیکوالو او شاعرانو له لیکلو کتابونو څخه څرګندېږي، دا دي چې د ځوانۍ په لومړیو کې یې له خپل پلار سره د ملي مبارزې په لړ کې په ځینو جنګونو کې هم برخه اخیستې ده. په وروسته وختونو کې یې د تصوف او عرفان خوا ته مخه کړه. ډېر روحاني او معنوي برکتونه یې لا د ځوانۍ په وختونو کې له خپل تره فقیر جمیل بیګ څخه موندلي وو.
د خانۍ او سردارۍ له چارو سره یې دومره علاقه نه لرله. د ژوند شپې او ورځې یې د دیني او ادبي علومو په تدریس، د کتابونو په لیکلو، ژباړلو او د خلکو په معنوي لارښوونه تېر کړي دي.
عبدالقادر خان خټک د دې لپاره چې په پښتو ژبه آثار زیات شي خلک ترې استفاده وکړي ډېر آثار یې لیکلي او ژباړلي دي، په ځینو ادبي څېړنو کې د دغو آثارو شمېر تر شپېتو زیات ښودل شوي دي.
تر اوسه د نوموړي دا لاندې لیکلي او ژباړلي کتابونه ترلاسه شوي دي:
۱_ د شعرونو دېوان: په افغانستان او پښتونخوا کې څو ځله چاپ شوی دی.
۲_ ګلدسته: دا د شیخ سعدي شیرازي د ګلستان پښتو ژباړه ده چې په ۱۱۲٤ هـ. ق. کال یې کړې ده.
۳_ یوسف زلیخا: د مولانا جامي د یوسف زلیخا پښتو ژباړه ده چې په ۱۱۱۲ هـ. ق. کال ترسره شوې او لومړی ځل د امیر عبدالرحمٰن خان د واکمنۍ په وخت کې د نوموړي امیر په حکم په ۱۳۱۵ هـ. ق. کال په کابل کې چاپ شوې ده.
٤_ نصیحت نامه: تر اوسه نه ده چاپ شوې.
۵_ څلوېښت حدیثونه: د حضرت محمدﷺ د څلوېښتو حدیثونو منظومه ژباړه ده. تر اوسه نه ده چاپ شوې، قلمي نسخې یې شته.
٦_ قصیده برده: د عربي برده قصیده پښتو ژباړه ده چې نظم شوې ده. دا کتاب تر اوسه نه دی چاپ، قلمي نسخې یې موجودې دي.
د عبدالقادر خان خټک د راپاتې آثارو له مطالعې څخه معلومېږي چې نوموړی پیاوړی خوږ ژبی شاعر، لیکوال او ژباړن و. د نوموړي د مړینې کال نه دی معلوم. د افضل خان خټک د تاریخ مرصع د یوې یادونې له مخې یې تر ۱۱۲۵ هـ. ق. کال پورې ژوند یقیني دی.

د عبدالقادر خان خټک څو څلوریځې د هغه د شاعرۍ د بېلګو په توګه ولولئ:

مه کړه هیچا ته ګیله لــه بختـــه
مراد نه مومي هیڅوك بې وختــه
شکر وکاږه پــه هــر احــوال کې
بــــلا یې لا ده تر بــــــلا سخته

***

ځوانمرد هغه دی چې لکه شمعه
د ځان په سولو مجلس کا جمع
د بل د پـــــاره که پــه خندا وي
په مخ یې دروميـي باران د دمـع

***

ژبه عـــــادت کړه په ښو خبرو
خبرې ښې دي ښې تر شکـــــرو
د خونــد مثال یې شکرې وایم
قــــــدر یې ډېر دی تر مرغلــرو

## د متن لنډیز:

د خوشحال خان خټک په فرهنګیالیو زامنو کې عبدالقادر خان خټک نومیالی شاعر، لیکوال او مترجم و. عبدالقادر خان خټک تر شپېتو زیات کتابونه په نظم او نثر لیکلي او ژباړلي دي، خو موږ ته یې تر اوسه دا لاندې شپږ کتابونه په لاس راغلي دي:

(۱) د شعرونو دیوان (۲) ګلدسته (۳) یوسف زلیخا (٤) نصیحت نامه (٥) څلوېښت حدیثونه (٦) قصیده برده. په دغو آثارو کې یې درې لومړني چاپ شوي او وروستني درې یې د قلمي نسخو په توګه موجود دي.




۱ـ زده کوونکي دې متن په چوپه خوله ولولي، بیا دې یو یو زده کوونکی په وار سره د متن یو یو پراګراف د ټولګي په وړاندې ولولي.

۲ـ زده کوونکي دې د ښوونکي له خوا پر تختې لیکل شوي نوي لغتونه او د هغو معناوې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

۳ـ د ټولګي زده کوونکي دې په دوو ډلو بېل کړل شي، يوه ډله دې په متن کې خاص نومونه او بله دې صفتونه په نښه کړي. هغه دې په خپلو کتابچو کې وليکي.
بيا دې د بلې ډلې زده کوونکی يو خاص نوم پر تختې و ليکي، د هغې بلې ډلې زده کوونکي دې هغه په جمله کې و کاروي.

۵ـ زده کوونکي دې يو يو د ټولګي مخې ته راوبلل شي چې د عبدالقادر خان خټک د شعر مفهوم په خپلو الفاظو کې ووايي.

٦ـ زده کوونکي دې د لاندې پوښتنو په کولو سره وارزول شي.

- عبدالقادر خان خټک څوک دی؟
- عبدالقادر خان خټک کوم کتابونه ليکلي يا ژباړلي دي؟
- د خټکو کورنۍ پښتو ادب ته څه خدمتونه کړي دي؟

۷ـ د لاندې جملو په تشو ځايونو کې په پنسل مناسبې کلمې وليکئ:

ـ عبدالقادر خان خټک د.............................. زوی و.

ـ عبدالقادر خان خټک د شيخ سعدي............. په پښتو ژبه د............ په نامه ترجمه کړې ده.

ـ عبدالقادر خان خټک په............. کال زېږېدلی او تر............. پورې يې ژوند يقيني دی.

۸- څو زده کوونکي دې په ټولنه کې د شاعرانو ارزښت په هکله خبرې وکړي.

ـ له څو زده کوونکو څخه دې پوښتنه وشي، چې د آثارو زياتوالی په يوه ژبه کې څومره ارزښت لري ؟

۹- که وخت وي يوشمير زده کوونکي دې د لوست د نتيجې په هکله خبرې وکړي، دغه راز څو زده کوونکي دې د پښتو آثارو د ليکلو يا ساتلو په برخه کې د خپل تصميم په باره کې وينا وکړي.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د عبدالقادر خان خټک د شعر مفهوم په خپلوکتابچو کې وليکي او په راتلونکي درسي ساعت کې دې هغه د ټولګيوالو په وړاندې ولولي.





# دارالامان ماڼۍ

ـ تاسې په خپلو سيمو، ښارونو او يا د هېواد په مرکز کې پخوانۍ تاريخي ودانۍ ليدلي دي؟که مو ليدلي وي چېرې او کومې ودانۍ؟

زموږ د هېواد په پايتخت او د ځينو ولايتونو په مرکزونو کې ځينې داسې ودانۍ شته چې پخوانيو واکمنانو جوړې کړې دي او اوس د تاريخي ودانيو په توګه ځانګړې ارزښت لري. له دغو تاريخي ودانيو څخه يوه د دارالامان ماڼۍ ده چې د اعليحضرت غازي امان الله خان د واکمنۍ پر مهال جوړه شوې ده. دلته يې په دې لوست کې درپېژنو.

د دارالامان ماڼۍ زموږ د هېواد له پخوانیو مشهورو تاریخي ودانیو څخه ده چې د اعلیحضرت غازي امان الله‌خان د واکمنۍ (۱۲۹۸ _ ۱۳۰۷ هـ.ش) په کلونو کې جوړه شوې ده.

دغه ودانۍ چې د کابل ښار په سویلي برخه کې پرته ده د آرتل په مشرۍ او لارښوونه د الماني انجینرانو او کارپوهانو له خوا یې په ۵۴۰۰ مربع متر ځمکه کې کار پیل شو، تر ۱۳۰۶ هـ. ش. کال پورې د نوې معمارۍ په دود د ۳۳ مترو په لوړوالي درې پوړیزه جوړه شوه، خو د ودانۍ کار یې بشپړ نه شو.

د دې ودانۍ په جوړولو کې پر بهرنیانو سربېره مشهورو افغاني معمارانو، ترکاڼانو او انځورگرانو هم په ډېر ظریف او هنرمندانه ډول کار کړی چې ودانۍ ته یې ښکلا او ځلا وربښلې ده. په ځانگړې توگه د دې ودانۍ د دریم پوړ لویه خونه چې په بیضوي بڼه جوړه او د پارلمان د مقر لپاره ټاکل شوې وه، داسې ښکلې او انځوریزه جوړه شوې ده چې په هغه مهال کې یې د سیمې په هېوادونو کې ساری نه لیدل کېده.

دغې تاریخي ودانۍ ۱۵۰ لویې او کوچنۍ خونې درلودې چې د هغه وخت د اماني حکومت د دولتي چارواکو لپاره په پام کې نیول شوې وې.

د دې ودانۍ په لومړي برج کې چې له لوی سرک سره لگېدلی و، د پاچا د کار دفتر و او ترڅنگ یې شاهي دارالتحریر او د سلطنتي دربار وزارت او په ښکته پوړونو کې یې نورې لوړې دولتي ادارې وې.

دغه ودانۍ په خپل وخت کې په ډېرو لوړو عصري وسایلو سمباله جوړه شوې وه او ډېرې اسانتیاوې یې درلودې. د بېلگې په توگه دا لومړنۍ عصري ودانۍ وه چې د اوبو رسولو سیستم یې په عصري بڼه جوړ شوی و. د اړتیا وړ اوبه یې د قلعه قاضي د چونغر له چینې څخه په نلونو کې ورته لېږدول کېدې.

د دې ښکلې ودانۍ په جوړولو هغه مهال ډېر لوړ لگښت شوی و، خو لا یې ودانیزې چارې بشپړې پای ته نه وې رسېدلې چې د کورني اړو دوړ (۱۳۰۷ لمریز کال) په رامنځ ته کېدو نیمگړې پاتې شوې. جگړه په یوه هېواد کې ډېرې بدبختۍ را منځ ته کوي، انسانان پکې خپل خوږ ژوند له لاسه ورکوي، سوله او آرامي له منځه وړي، د یوه هېواد ورانۍ رامنځ ته کوي ، په نا آرامۍ کې د یوه هېواد ټول انسانان له زده کړې او نورو حقوقو نه بې برخې کېږي.

تر کورني اړودوړ وروسته د اعلیحضرت محمد نادر شاه د واکمنۍ پر مهال له دغې ودانۍ څخه د کابل د طب پوهنځي د درسي ټولګیو او لیلیو لپاره کار واخیستل شو. د ظاهر شاه د واکمنۍ په موده کې هغه وخت چې سردار محمد داوود خان صدر اعظم و، د مالیې او فواید عامې وزارتونه پکې وو او په همدغه موده کې یې د بیا رغونې ځینې چارې هم ترسره شوې.

په ۱۳۴۷ لمریز کال د لیندۍ په میاشت کې د اور لګېدنې له امله د ودانۍ ډېرې برخې د اور خوراک شوې. د جمهوریت په کلونو کې یې د ویجاړو شویو برخو رغونه وشوه او عدلیه وزارت پکې ځای پر ځای شو. د ثور تر پېښو وروسته زیاتره وختونه د نظامي موخو لپاره وکارول شوه.

څه موده پکې د ملي دفاع وزارت و، تر ۱۳۷۱ لمریز کال راوروسته ورته د کورنیو بدمرغه جګړو په بهیر کې ډېر زیانونه واوښتل او په کنډواله بدله شوه. په ۱۳۹۵ لمریز کال کې یې د بیا رغونې کار پیل او ۱۳۹۸ لمریز کال کې یې د بیا رغونې چارې سرته ورسید. دغه ودانۍ د یو ارزښتناک تاریخي کلتوري میراث په توګه ساتنې ته اړتیا لري.

دغه راز په هېواد کې نورې تاریخي ودانۍ هم لرو چې باید ورته پاملرنه وشي او په خپل خپل وخت سره هغه بیا ورغوو چې د سیمو په ښکلا کې خپل رول وساتي او زموږ د لرغونو اثارو په شتمنۍ کې برخه واخلي.

## د متن لنډیز:

د دارالامان ماڼۍ زموږ د هېواد له پخوانیو تاریخي ودانیو څخه ده چې د کابل ښار په سویلي برخه کې واقع ده.

د اعلیحضرت غازي امان الله خان د واکمنۍ پر مهال جوړه شوې ده او بیا وروسته د بېلا بېلو واکمنانو د واکمنیو په دورو کې د بېلا بېلو موخو لپاره کارول شوې ده. یو وخت د اورلګېدنې له امله ډېره زیانمنه شوه او له ۱۳۷۱هـ. ش. کال را وروسته د کورنیو جګړو په بهیر کې ډېر زیانونه ور اوښتي دي چې اوس بیا رغول شوې.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په چوپه خوله ولولي او د ښوونکي له خوا پر تختې لیکلي شوي لغتونه او د هغو معناوې دې په خپلو کتابچو کې و لیکي، له لغتونوڅخه دې مناسبې جملې جوړې کړي او په وار سره دې په ټولګي کې و لولي.

۲ـ زده کوونکي دې په وار سره راوبلل شي چې د لوست مفهوم په خپلو الفاظو نورو ټولګیوالو ته ووایي.

۳ـ که زده کوونکي د کومې بلې مانۍ په اړه معلومات لري، نو ټولګیوالو ته د ې خپل معلومات وړاندې کړي.

٤ـ د متن دې لاندې جملې ته دې هر زده کوونکی له خپلې پوهې او ذوق سره سم په مناسبه توګه پراختیا ورکړي او څو پر له پسې معنالرونکي جملې دې په پنسل ولیکي.

موږ ښوونځي ته د زده کړې لپاره راځو او غواړو چې.........................

٥- زده کوونکي دې په ډلو کې د ماڼیو د ارزښت په هکله خبر ې وکړي، بیا دې یې یو استازی د نورو په استازیتوب ټولګیوالو ته ووایي.

٦- څو زده کوونکي دې په دې هکله خبرې وکړي چې د ماڼیو جوړول زموږ په ژوند کې څه ارزښت لري؟

-څو زده کوونکي دې په وار سره د جګړو د زیانونو په هکله خپلو ټولګیوالو ته خبرې وکړي.

- څو زده کوونکي دې ووایي چې په جګړو کې د انسان کوم حقونه له منځه ځي؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د خپلو مشرانو په مرسته د کومې بلې مانۍ یا تاریخي ودانۍ په هکله یوه یوه مقاله ولیکي اوبه بل درسي ساعت کې دې ټولګیوالو ته ووایي



دولسم لوست

# عالمان دي روښنايي د دې دنيا



- تاسې د شعر کوم ډولونه پېژنئ؟
- د شعر کوم ډول مو ډېر خوښېږي او ولې؟

شعر د بڼې له مخې بېلابېل ډولونه لري، لکه :غزل، قصيده، مثنوي، غزل او نور. غزل د شعر ډېر مشهور ډول دی چې له پنځو څخه تر پنځلسو پورې بيتونه لري. ټول بيتونه يې په يو وزن او قافيه کې تر پايه له مطلع څخه پيروي کوي. لومړي بيت ته يې((مطلع)) او وروستي بيت ته يې((مقطع)) وايي.

تاسو به د پښتنو لوی شاعر رحمان بابا نوم هم اورېدلی وي. په دغه لوست کې به د دغه نوميالي شاعر داسې يو غزل ولولئ چې د پوهانو او عالمانو ارزښت او لوړ مقام ټينګار پکې شوی دی او پوهان پکې د دې نړۍ ځرا غونه بلل شوي دي.

عــــالمــــان دي روښنــــايي د دې دنيــــــا
عــــالمــــان دي د تمــام جهـــان پيشـــوا
که څوك لار غواړي و خداى و هم رسول تــه
عــــــالمــــــان دي د دې لارې رهنـــمــا
کيميــــاګر که د کيميـــا پــه طلـب ګرځي
همـــــدمي د عــــالمـــانـــو ده کيميـــــا
پـــه مجــلس د عـــالمـــانــو به سره زرشي
کـــه څوك کـــاڼي وي يا لوټه د صحرا
جـــاهـــلان دي په مثـــال د مـــرده ګـــانــو
عـــالمـــان دي پـــه مثـــال د مسيحـــا
هـــر سړى چې رتبـــه نـــه لري د عــلم
ســـړى نه دى خـــــالي نقش دى ګويــا
زه رحمـــــان حلقه بګوش د هـــر عالم يم
کـــــه اعـــلى دى که اوسط دى کــه ادنا

اروابښاد عبدالرحمان بابا (رح)

خرګندونې:

کيميا:کيميا، کيمي، شيمي، کيمستري. هغه علم دى چې د مادې له ترکيب، جوړښت، خواصو او تعاملاتو څخه غږيږي.

۱ـ کيمياګر:هغه چا ته ويل کيږي چې عادي فلزات په عالي فلزاتو(سرو زرو) اړوي.

۲ـ کيميا پوه :هغه څوك دى چې د کيميا په علم کې يې پوهه اوتخصص ترلاسه کړى وي.

**د متن لنډيز:**

په غزل کې تاسو ولوستل چې پوهان او عالمان د نړۍ روښنايي او د خلکو لارښوونکي دي. که څوك غواړي چې په خپل ژوند کې بريالي اوسي او خپلې ورځنۍ دندې په ښه توګه سرته ورسوي، بايد له عالمانو او پوهانو سره ناسته ولاړه ولري، له هغوڅخه يې زده کړې او ويناوو ته يې غوږ ونيسي. که چېرې يو څوك له چاسره کيني، د هماغه مجلس او ملګرو تر اغېزې لاندې راځي، نو ځکه رحمان بابا لارښوونه کړې چې بايد له پوهانو سره نژدې واوسو چې له هغوی سره ناسته ولاړه ډېره ګټه لري لکه: سره زر او سپين زر ډېره لوړه بيه لري.




۱ـ زده کوونکي دې د ښوونکي د لوست ويلو وروسته، لوست په چوپه خوله ولولي او خپل ستونزمن کلمات دې په نښه کړي.

• د ښوونکي په غوښتنه دې په وار سره دوه، درې تنه زده کوونکي د ټولګي مخې ته راشي په مناسب آواز سره دې لوست ولولي، نور زده کوونکي دې د کلمو تلفظ او د جملو جوړښت ته ځير شي، د کلمو په تلفظ دې ځان و پوهوي.

۲ـ يو زده کوونکی دې تختې ته لاړ شي، د رحمان بابا د شعر څو بيتونه دې پر تختې وليکي، بيا دې دوه زده کوونکي په وار سره د تختې د بيتونو د معنا په هکله خبرې وکړي.

• يو زده کوونکی دې لاندې لغتونه پر تختې وليکي او نور زده کوونکي دې هغه په خپلو کتابچو کې په جملو کې وکاروي.

سرې، لار، عالمان، علم، خالي، زر، مجلس، نوميالي، ځراغونه

زده کوونکي دې ليکلې جملې د بېلګې په ډول په بېلابېلو کتارونو کې ټولو ته په لوړ آواز ولولي.

۳ـ يو يا دوه زده کوونکي د ې په وار سره د شعر د مفهوم په هکله خبرې وکړي.

• څو زده کوونکي دې د شعرله مفهوم څخه په ګډې اخيستنې د خپل راتلونکي په هکله خبرې وکړي چې غواړي په راتلونکي کې ترې څه جوړ شي او غواړي چې د کوم علم لور ته مخه کړي؟

٤_ دوه زده کوونکي دې د ټولګي په دواړو خواوو کې ودريږي. يو له بل څخه دې د درسونو، راتلونکې دندې او مسلک په هکله پوښتنې وکړي. په دې ډول چې يو پوښتنه کوي او بل يې ځواب ورکوي.

٥_ يو زده کوونکی دې د ټولګي مخې ته ور شي له رحمان بابا پرته دې د څو نورو پښتو ژبې شاعرانو نومونه واخلي، نور زده کوونکي دې د هماغو شاعرانو په اړه يو څو خبرې وکړي.
که چېرې زده کوونکو د شاعرانو پېژند ګلوي ونه کړای شوه، په خپله ښوونکی دې پرې خبرې وکړي.

• زده کوونکي دې په خپله خوښه په خپلو کتابچو کې د حال او ماضي زمانې په هکله جملې وليکي بيا دې څو تنه خپلې ليکل شوې جملې د ټولګي په مخکې ووايي او ښوونکی دې د اړتيا په وخت کې لارښونه وکړي.

• څو زده کوونکي دې په وار سره په دې هکله خبرې وکړي که چېرې په ټولنه کې علما او تعليم نه وي، نو د ټولنې انسانان به له خپلو حقوقو څخه له کوم حق نه بې برخې شي؟




زده کوونکی دې دنده واخلي، که چېرې يې په سيمه کې کوم شاعر وي، د هغه د ژوند په هکله دې په خپلو کتابچو کې څو کرښې وليکي او په بل درسي ساعت کې دې ټولګيوالو ته ولولي.



دیارلسم لوست

# عبدالرووف بېنوا



- تاسې د هېواد له اوسنیو نومیالیو لیکوالو او شاعرانو څخه د چا نومونه اورېدلي او د هغو لیکلي کتابونه مو لوستلي یا لیدلي دي؟

د پښتو ادب په اوسنۍ دوره کې یو شمېر نومیالي لیکوال، شاعران او فرهنګي شخصیتونه لرو چې د پښتو ژبې او ادب د پرمختیا لپاره یې د ستاینې وړ خدمتونه او هڅې کړې دي. عبدالرووف بېنوا هم له دغو نومیالیو شخصیتونو څخه دی چې په دې لوست کې یې درپېژنو.

عبدالرووف بېنوا د مفتي عبدالله زوی په ۱۲۹۳ هـ. ش. کال په کندهار کې زېږېدلی و. لومړنۍ زده کړې یې د خپلې کورنۍ او سیمې له دیني عالمانو څخه وکړې.
بیا یې د خپل ځانګړي ذوق او علاقې له مخې د دیني او ادبي علومو او فنونو مطالعې ته دوام ورکړ. د ځوانۍ په لومړیو کې یې په شعر ویلو او لیکوالۍ پیل وکړ، ډېر ژر یې د خپل پیاوړي استعداد له مخې په دغه برخه کې د پرمختګ پړاوونه ووهل او د شاعر او لیکوال په توګه وپېژندل شو. په ۱۳۱۷ هـ. ش. کال له کندهار څخه کابل ته راغی، د وخت د ډېرې مشهورې علمي او فرهنګي ادارې ((پښتو ټولنې)) غړی شو. څه موده یې په دغه اداره کې د صحافت د څانګې د مدیر په توګه کار وکړ او بیا د کابل مجلې مدیر شو. څو کاله یې دغه دنده په ډېر بریالیتوب سره تر سره کړه، بیا د پښتو ټولنې مرستیال او څه موده وروسته د پښتو ټولنې لوی مدیر شو. په همدغو وختونو کې څه وخت د هېواد ورځپاڼې مسوول چلوونکی هم و. په ۱۳۳۵ هـ. ش. کال د کابل راډیو د ریاست چارې وروسپارل شوې. څو کاله وروسته په مصر کې د افغانستان د سفارت مطبوعاتي استازی او وریسې د ولسي جرګې وکیل او په ۱۳۴۶ هـ. ش. د اطلاعاتو او کلتور وزیر شو. نوموړي پر شعر او شاعرۍ سر بیره په ژورنالستیکي او تاریخي برخو کې هم خورا ډېرې لیکنې کړي او ارزښتناک آثار ورڅخه په میراث راپاتې دي.
په خپلې مورنۍ ژبې پښتو او دري سربېره په عربي، اردو او انګلیسي ژبو ښه پوهېده او په دغو ژبو یې لیکنې او ژباړې کړې دي. بېنوا په خپلو شعري او نثري آثارو کې د خپلې ټولنې د بې وزلو وګړو ژوند انځور کړی او تل د بې وزلي ولس په څنګ کې درېدلی دی.
د چاپ او ناچاپ کتابونو شمېر یې له ۵۰ څخه زیات دی. دلته یې د ځینو آثارو نومونه اخلو: اوسني لیکوال (۳ ټوکه) د افغانستان نومیالي (٤ ټوکه) میرویس نیکه، پرېشانه افکار، (د شعرونو ټولګه) د شعرونو کلیات، د افغانستان تاریخي پېښې، د زړه خواله (ادبي لیکونه) او نور. بېنوا د ژوند په وروستیو کې په لیبیا کې د افغانستان سفیر و. له هغه ځایه امریکا ته لاړ او په ۱۳۶۳ هـ. ش. کال هلته مړ او خاورو ته وسپارل شو.
د عبدالرووف بېنوا یوه لنډه ادبي ټوټه:

## ګرانه ملګریه!

یو ګل چې څومره ډېر رنګونه ولري، ښکلا یې هم هومره زیاته وي او چې څومره مخونه ولري، هغومره د ستاینې وړ دی، خو یو انسان که دوه رنګه شو یا یې ځان دوه مخی وښوده، نو نور یې مخ د کتو نه وي. پوهان وایي: ((څنګه چې یې، هغسې ځان ښیه او څنګه چې ځان ښیې، هغسې اوسه.)) خو ځینې انسانان شته چې نه یوازې څو رنګه، څو بڼې او څو مخه لري، بلکې ورسره څو ژبې یې هم په خوله کې وي او د ماهرو ایکټرانو په څېر د خپل هر رنګ او هر مخ د ښودلو لپاره مخصوصې صحنې لټوي او د خپلې هرې ژبې لپاره ځانته موقع ګوري.
داسې انسانان د نورو په رنګ رنګېدل نه غواړي، خو د ځان د رنګ په بدلولو کې دومره ماهر وي چې نور

په خپل رنګ ژر غولولی شي. د مخونو په پېژندلو کې لاس لري، خو د دوی د مخ بنه پېژندل د مصنوعي سپوږمۍ په اصلي ماهیت پوهېدل غونډي وي. دوی په خپله ژبه پسې نه ګرځي، خو خپله ژبه د هر چا او هر ځای د اقتضا سره سمه ګرځوي. دوی د هر مجلس له رنګ سره خپل رنګ بدلولی شي او د هر چا د خوب رګ یې ځانته معلوم کړی وي.

دوی په همدغه یوه ژبه غله ته وایي غلا کوه او د کور خاوند ته وایي:کور ساته !

ظالم ته د ظلم لاره ښیي او مظلوم ته د انتقام اخیستلو سترګکونه وهي.

حاکم ته محکومین وي او محکومینو ته د حاکمانو په رنګ کې وړاندې کېږي او که ورته ځېر شو همدا دوه مخي، دوه رنګي کسان دي چې د ټولنې د طبقاتو تر منځ د دې پر عوض چې وحدت، یووالی او ښه نیت پیدا کړي، د هغوی په منځ کې د بدبینۍ، بدګمانۍ او بدنیتۍ توري پردې اچوي، که د حاکمې او محکومې طبقې ترمنځ واقع شي دواړو خواوو ته داسې ځرګندوي چې همدا دوی دي چې د دې دوو طبقو ترمنځ یې آرامي ساتلې ده، که دوی نه وي، د هغوی آرامي به هم ویجاړه شي. حال دا چې که دا دوه مخي او دوه رنګي له منځه لاړ شي، د طبقاتو ترمنځ مستقیمه رابطه او مفاهمه ډېر ژر د دوی منځ ته صمیمیت او یو رنګي راوستلای شي. نو ګرانه ملګریه!

که غواړو چې د ښه او نېکمرغه ژوند سره مخامخ شو، لازمه ده چې د دې دوه رنګۍ، دوه مخۍ او دوه ژبۍ شخه لومړی ځانونه وژغورو او بیا یې په ټینګه د مخنیوي لپاره زیار وباسو. هر چاته او په هر مجلس کې چې ښکه یو، هغسې ځانونه وښیو او چې ښکه ځانونه ښیو، هغسې و اوسو او دا مو ډاډ وي چې یوه ورځ نه یوه ورځ به ضرور د دوه مخو مخونه تور او د دوه رنګو رنګونه ورک او د دوو ژبو ژبې وچې شي، ځکه چې ((کوږ بار تر منزله نه رسېږي)) او ((دوې هندوانې په یوه لاس کې اخیستی کېدای نه شي.)) (د زړه خواله)

دلته د شاعر یوه څلوریځه د نمونې په توګه راوړو:

انساني مینه

انســـــــان ژوندي پـه مینه
خو یې مینـه هــومره وینه

چې یې زړونه شي بې مینې
تـــویـــــوي یو د بل وینې

د متن لنډېز:

عبدالرووف بېنوا د پښتو ژبې پیاوړی لیکوال او شاعر و. تاریخ لیکونکی او هېوادپال سیاستوال و چې لږو ډېر پنځه لسیزې یې هېواد او خلکو ته د ستاینې وړ فرهنګي خدمتونه کړي دي. په لس ګونو کتابونه او په سلګونو مقالې یې چاپ او خپرې شوې دي. دی د

افغانستان په معاصرو ليکوالو او شاعرانو کې له لوړ ادبي دريځ او شهرت څخه برخمن دی.

## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن ولولي، مشکل لغتونه دې په نښه کړي او بيا دې ښوونکی ورسره مرسته وکړي.
۲ـ زده کوونکي دې متن په چوپتيا سره ولولي. پر تختې ليکلي لغتونه دې په خپلو کتابچو کې وليکي او په مناسبو جملو کې دې وکاروي.
۳ـ ځينې زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته د متن د يو يو پراګراف د لوستلو لپاره راوبلل شي.
٤ـ زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته د لوستل شوي متن د مفهوم د څرګندولو لپاره وبلل شي.

٥ـ زده کوونکي دې د لاندې نيمګړو جملو تش ځايونه په پنسل سره په مناسبو کلمو ډک کړي:
ـ عبدالرووف بېنوا د پښتو ژبې نوميالی................... او................. و.
ـ عبدالرووف بېنوا په.................... کال په..................... کې ومړ.
ـ عبدالرووف بېنوا له................. څخه زيات چاپ او ناچاپ........................ لري.

٦ـ ښوونکی دې د لاندې پوښتنو په کولو سره له لوست څخه د زده کوونکو د پوهېدنې کچه وارزوي:
ـ عبدالرووف بېنوا څوک و؟
ـ عبدالرووف بېنوا پښتو ژبې او ادب ته کوم خدمتونه کړي دي؟
ـ عبدالرووف بېنوا کله او چېرې ومړ؟
ـ تاسې د عبدالرووف بېنوا د کومو کتابونو له نومونو سره آشنا شوئ؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د خپلې سيمې د کوم ليکوال يا شاعر څو کرښې پېژندګلوي وليکي او په راتلونکي ساعت کې دې ټولګيوالو ته ولولي.





# سره میاشت



تاسې داسې خیریه ټولنې یا اداري پېژنئ چې د ناوړو طبیعي پېښو یا جګړو له امله له زیانمن شوو وګړو سره مرستې کوي؟

په ملي او نړیواله کچه ځینې داسې اداري شته چې له مصیبت ځپلو، په تېره له هغو کسانو سره چې د طبیعي آفتونو (زلزلو، سېلابونو، توفانونو) او جګړو له امله زیانمن شوي وي، مرستې کوي. له دې ډول خیریه ادارو څخه یوه هم ((سره میاشت)) ده چې په دې لوست کې یې درپېژنو.

بېوزلو او محتاجو وګړو ته د خوراک، څښاک، استوګنې، روغتيا، ښوونې او روزنې، کار کسب او داسې نورو شيانو برابرول چې د هغو ی انساني حقوق دي د مرستندويه او خيريه ټولنو دندې دي. دا خيريه او مر ستندويه ټولنې هم په نړيواله او هم په ملي کچه وي. د دغو مرستندويه ټولنو په ډله کې يوه هم ((سره مياشت)) ده چې د نړۍ په ټولو هېوادونو کې شته او په بېلا بېلو نومونو يادېږي. د مثال په ډول په عربي هېوادونو کې يې د ((هلال احمر)) او په لوېديځه نړۍ او يو شمېر نورو هېوادونو کې يې ((سور صليب)) بولي.

د دې مرستندويې ټولنې لومړنۍ بنسټ په ۱۸٦٤م. کال د نولسمې پېړۍ د جګړو په بهير کې چې ډېره مرګ ژوبله او ويجاړتيا يې رامنځ ته کړه، ايښودل شوی دی. په همدغو وختونو کې دغې مرستندويې خيريه ټولنې د ټپي او نيول شوو سرتېرو ملاتړ کاوه او د هغو مرستې ته يې ځان ورساوه چې دا کار د هر انسان انساني دنده ده.

لومړنی شخص چې د دغسې خيريه مرستندويه ټولنې د جوړولو فکر ورسره پيدا شو، د سويس استوګن هانري دونانت نومېده. د افغاني سرې مياشتې ټولنه په ۱۳۳٤ لمريز کال د سره صليب د نړيوالې کمېټې له خوا په رسميت وپېژندل شوه او د دغې نړيوالې ټولنې غړيتوب يې تر لاسه کړ.

په نړيواله کچه په اسلامي هېوادونو کې د دغې مرستندويې ټولنې د پېژندنې لويه نښه پر سپينې ځمکې (سطحې) باندې په سره رنګ ((هلال)) يا مياشت ده اوپه نورو هېوادونو کې د دې ټولنې نښه پر سپينې ځمکې(سطحې) باندې د صليب سور رنګې علامه ده، چې ((سور صليب)) يې بولي. ((سره مياشت)) يا ((سور صليب)) نړيواله مرستندويه ټولنه يا اداره ده چې هر چېرې د جګړو له قربانيانو، غمځپلو او بېوزلو سره ډول، ډول مرستې کوي. دا ټولنه د رنګ، عقيدې، ژبې او نسل له توپير پرته د اړمنو خلکو مرستې ته هر چېرته ځان رسوي. سره مياشت د ډول، ډول طبيعي افتونو، زلزلو او سېلابونو په وخت کې له زيانمنو شوو وګړو سره مرسته کوي، د جګړې پر مهال د دې ټولنې روغيتايي کار کوونکي د ټپيانو درملنه کوي. پر ټپونو يې پټۍ لګوي او روغتونونو ته يې لېږدوي. همدارنګه د جنګي بنديانو حال احوال معلوموي، ليکونه او پيغامونه يې کورنيو او خپلو خپلوانو ته رسوي يا تبادله کوي. د مرستو له دغې نړيوالې کمېټې سره د نړۍ هېوادونه له خپل وس او توان سره سمه مرسته کوي چې هغوی يې بيا د نړۍ بېلا بېلو هېوادونو او ولسونو ته د اړتيا په وخت کې رسوي او په دې ډول خپله بشري ټولنيزه دنده پرمخ بيايي.

## د متن لنډیز:

سره میاشت یوه خیریه مرستندویه ټولنه ده چې له مُصیبت ځپلو وګړو سره مرستې کوي.

دا ټولنه زموږ په هېواد کې څو لسیزې دمخه تأسیس شوې ده.

دا ټولنه د سره صلیب د نړیوالې ټولنې غړیتوب لري. د نړیوالو مرستو او کورنیو مرستو او د خپلو ملکیتونو له عایداتو څخه له اړمنو خلکو سره مرسته کوي.

## فعالیتونه

۱_ د ښوونکي د متن لوستلو، معناکولو او لازمو څرګندونو وروسته دې زده کوونکي په وار سره د متن یو یو پراګراف ولولي.

۲_ زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د متن په رڼا کې د دې لاندې جملې په دوام څو جملې ولیکي:

سره میاشت یوه خیریه مؤسسه ده چې له مُصیبت ځپلو وګړو سره مرسته کوي. دا مرستې...

وروسته دې بیا په نوبت سره خپلې لیکلې جملې په ټولګي کې ولولي.

۳_ له زده کوونکو دې وپوښتل شي:

_ په نړیواله سطحه د سره صلیب ((سره میاشت)) اداري بنسټ کله او د چا له خوا د څه لپاره کېښودل شو؟

_ سره میاشت په کومو حالاتو کې له خلکو سره مرسته کوي؟

_ که ستاسې په کلي یا سیمه کې کومه طبیعي پېښه رامنځ ته شي، له خپل توان سره څه ورسره کوئ؟

٤ـ ځینې زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راوغوښتل شي چې په مُصیبت کې چا له مُصیبت ځپلو سره څه مرسته کړې وي، نورو ټولګیوالو ته دې معلومات ورکړي.

٥ـ زده کوونکي دې پر دریو ډلو ووېشل شي. یوه ډله دې له متن څخه په (س) پیل شوې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي، بله ډله دې په (ت) توري او دریمه دې په (هـ) توري پیل شوې کلمې ولیکي او په مناسبو جملو کې دې یې وکاروي.

٦ـ ښوونکی دې د ګل پاچا الفت دا لاندې دوه بیتونه پر تختې ولیکي او ځینې زده کوونکي دې تختې ته را وبولي چې د هغو مفهوم په خپله ژبه ووایي:

ژاړي په غمونو کې خواخوږي له هر چا سره
سل پتنــګان سوزي د یــوې شمعې ژړا سره
نه ښايي انسان ته چې د بل په غم غمجن نشي
لویه بدبختي ده که څوک نه ژاړي له چا سره

ارواښاد ګل پاچا ((الفت))

د دې شعر د مفهوم په اړه دې څو زده کوونکي په خپله خوښه لنډې لنډې څرګندونې وکړي.

• زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې درې درې صفتونه له متن څخه پیدا کړي او په خپلو کتابچو کې دې په جملو کې وکاروي.




زده کوونکي دې د کور، کوڅې او یا کلي له مشرانو څخه وپوښتي چې که د دوی په یادښت د طبیعي پېښو ((سېلابونو، زلزلو او جګړو)) له مصیبت ځپلو سره سرې میاشتې یا کومې بلې مرستندویې ټولنې او یا شتمن شخص څه مرسته کړې وي، هغه دې د یوې خاطرې په توګه ولیکي او په بل درسي ساعت کې دې ټولیګوالو ته ولولي.



پنځلسم لوست

# هوسۍ او کیږدۍ

- تاسې کله لیدلي چې یو چا د ستونزې او اړتیا په وخت کې بل چا ته پناه ور وړې وي؟
- که څوک چا ته پناه وروړي، پر هغه څه حق لري؟

پناه اخیستنه یو غوره لرغونی افغاني دود دی. کله چې کوم چا ته په ځانګړو حالاتو کې څه ستونزه پېښه شي او ژوند یې له ګواښ سره مخامخ شي، نو داسې چا ته پناه ور وړي چې له ده څخه ننګه او دفاع وکړای شي. په دې روزنیزه کیسه کې لولو چې څه ډول یوه هوسۍ له ښکاري څخه د یوه کوچي کیږدۍ ته پناه ور وړي او هغه ور څخه له خپل وس او توان سره سمه دفاع کوي.له دې څخه به ښکاره شي چې یو بې وزله او غم ځپلي ته پناه غوره ښېګڼه ده، خو ظالم، جګړه غوښتونکي اوقاتل ته پناه ورکول د غوره اخلا قو خبره نه ده.

وايي چې نوميالی پاچا محمود غزنوي به کله کله له خپلو ډېرو نږدې ملګرو سره ښکار ته تلو. په خپل منځ کې يې داسې پرېکړه کړې وه چې که د ښکار کولو په مهال د هر چا په مخکې ښکار پيدا شي، هماغه به ور پسې ځي. نور حق نه لري چې په هغه پسې لاړ شي او يا څه مرسته ور سره وکړي. په دې ورځ د سلطان محمود غزنوي پاچا له مخې نه هوسۍ پاڅېده او په ځغاسته شوه، سلطان هم ور پسې په آس سپور وځغليده، د غشو ګوزارونه يې پرې وکړل. هوسۍ برسيرنه ټپي شوه، خو په منډو وه. تر ډېر واټن وهلو وروسته هغه د ځان د ژغورنې لپاره د کوچيانو يوې کيږدۍ ته ورننوته.

په کيږدۍ کې ناست سپين ږيري کوچي او د هغه مېرمنې هوسۍ راونيوله او د هغې د ټپ په دارو درملو او پټۍ ابښودلو يې پيل وکړ. په دې وخت کې سلطان محمود هم ور ورسېد او د کيږدۍ تر څنګ ودريد. له کوچي څخه يې د هوسۍ غوښتنه وکړه. کوچي وويل چې دا هوسۍ، خوځکه نشو درکولای چې موږ ته يې پنا ه راوړې ده. سلطان ځان ور وپېژاند چې زه سلطان محمود غزنوي د دې ملك پاچا يم. کوچي ورته وويل: هر څوك چې يې، يې به، خو دا چې زموږ کور ته راغلی يې، زموږ مېلمه او د سترګو تور يې. زموږ دې خوارې کيږدۍ ته ښه راغلې. دلته کښېنه خپله ستړيا وباسه، شړومبې، سابه، جواری راسره وخوره، خدای دې خير کړي، هر څه به سم شي. کوچي له ډېرې مېلمه پالنې وروسته له سلطان محمود څخه هيله وکړه چې ته هم زموږ مېلمه او پر موږ پښتنو د ميلمه خاطر ډېر ګران وي، خپه کولای دې نشم. هوسۍ درکوم، خو په يو شرط چې دا نن شپه به له موږ سره تېره کړې، سبا به يې موږ په خپله ستاسو دربار ته دروړو. سلطان چې د دوی د مېلمه پالنې او افغاني احساس تر ژورې اغېزې لاندې راغلی و، دا خبره يې ومنله او ترې رخصت شو. سبا سهار کوچي او مېرمنې يې هغه هوسۍ له ځان سره کړه او د سلطان دربار ته ورغلل. کله چې د سلطان حضور ته وروستل شول. سلطان ډېر خوښ شو، تر روغبړ او ستړي مه شي وروسته يې کوچي ته وويل: تاسو د انعام او سوغات وړ ياست، هر څه چې له ما نه غواړئ، درکوم يې.

کوچي چې د سلطان دا خبرې واورېدې، په ورين تندي او له موسکا نه په ډکه خوله يې هغه ته وويل: صاحبه! زه څه ووايم، موږ کوچيان خلك يو، په ډېرو خبرو نه پوهېږو، خو اوريدلي مې دي چې پاچاهان او واکمنان لومړی خلکو ته دا ډول وعدې او ژمنې ورکوي، خو چې څه شی ترې وغواړي، بيا وايي چې نه داسې نه کېږي، بل څه وغواړه، سلطان محمود له خندا نه په ډکه خوله ځواب ورکړ: داسې خو به ته هم نه کوې چې ما له پاچاهي تخت نه راکوز کړې. له دې

پاچاهۍ نه پرته چې هر څه وغواړې، درکوم يې. وواېه څه درکړم؟ کوچي بيا په پسته ژبه خپله خبره غبرګه کړه: د پاچاهۍ وړ خو تاسې ياست، خدای دې هغه ستاسې روزي کړي، عمر دې ورته اوږد شه، زموږ نه ده پکار، موږ ته خپل کوچيانی ژوند پاچاهي ده، خو زه چې له تاسو نه څه غواړم هغه ما ته له پاچاهي نه هم لوړ ښکاري. په دې ډاريږم چې زړه به دې پرې و نشي او رابه يې نه کړې.

کله چې سلطان د خپلې وعدې د سرته رسولو ټينګار وکړ، نو کوچي په ډېرې خوښۍ سره وويل: ښه چې داسې ده، نو دا هوسۍ بېرته راکړه، ځکه چې دغې بېوزلې زموږ جونګړې (کيږدۍ) ته په ډېره هيله پناه راوړې او زموږ په قانون کې چې څوک د سختۍ په وخت کې چا ته پناه ورووړي، هغه بيا په هېڅ قيمت چا ته نه سپاري.

وايي کله چې سلطان محمود غزنوي د دغه کوچي د افغانيت دغه احساس وليد او د هغه دا خبرې يې واوريدې، خپلو درباريانو ته يې وويل:

زه په خپل افغانيت وياړم. هر څوک چې زما اصل او نسب په بل چا پورې وتړي، جزا به يې مرګ وي. تر دې وروسته يې حکم وکړ چې کوچي ته هوسۍ ورکړئ چې له ځان سره يې بوځي.

د متن لنډيز:

په کيسه کې د سلطان محمود غزنوي د ښکار پېښه بيان شوې چې يوه هوسۍ ور څخه تښتي او د کوچي کيږدۍ ته پناه وروړي، سلطان ور پسې کيږدۍ ته ورځي، خو هغه کوچی له پناه اخيستونکې هوسۍ څخه دفاع کوي، د ورغلي مېلمه تر مېلمه پالنې وروسته پوهيږي چې د وخت واکمن سلطان محمود غزنوي دی، نو هغه په قدر او عزت رخصتوي او ورسره ژمنه کوي چې سبا به يې دربار ته در ولي. سبا هلته له هوسۍ سره يو ځای ورځي. سلطان چې د کوچي مېړانه ګوري ور څخه غوښتنه کوي چې له ده څخه څه وغواړي، کوچي ور څخه همدا هوسۍ چې د ده کيږدۍ ته يې پناه وروړې، غواړي، پاچا هغه ورکوي او کوچی خوښيږي چې د پناه اخيستونکي ژوند يې ژغورلی او په خپل هوډ بريالی شوی دی. د غم او مُصيبت په وخت کې پناه ورکول غوره دود دی، خو جګړه ماروته پناه ورکول او د هغوی د ظلم او جګړو د ادامې په کار کې مرسته غوره دود نه دی او نه زموږ په کلتور کې دا ډول پناه ورکول ځای لري، هغه کسان چې داسې کوي، له ظالم سره مرسته کوي او داسې څه زموږ په کلتوري ارزښتونو کې نشته.



## فعاليتونه

۱- د ښوونکي تر متن لوستلو وروسته زده کوونکو ته لارښوونه کېږي چې متن په چوپتیا سره ولولي او مشکل لغتونه په نښه کړي.
۲- هر زده کوونکی خپلې په نښه کړې کلمې په لوړ غږ لولي. یو زده کوونکی یې پر تختې لیکي او نور یې معنا کوي.ښوونکی ورسره د اړتیا په وخت کې مرسته کوي.
۳- ځینې زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راوغوښتل شي چې د کیسې عمومي مفهوم په خپلو الفاظو ووایي.
٤- ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي چې په کتابچو کې لیکلي لغتونه په جملو کې وکاروي. بیا دې په نوبت سره تختې ته لاړ شي، هر زده کوونکی دې د خپلې خوښې یو لغت چې په جمله کې یې کارولی دی، د تختې پر مخ په بشپړه توګه ولیکي.
٥- زده کوونکي دې دوه دوه شي او هغوی ته دې دنده ورکړل شي چې لومړی یو زده کوونکی د کیسې له متن څخه یوه برخه بل ته د املا په توګه ووایي، هغه دې د کتاب له متن سره پرتله کړي او بیا دې هغه بل زده کوونکی هم کټ مټ دا کړنه تر سره کړي.
٦- زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي. یوه ډله دې په متن کې نومونه او بله ډله دې صفتونه په نښه کړي. د هرې ډلې استازی دې هغه د نورو په استازیتوب د ټولګي په وړاندې ولولي. ښوونکی دې په سمونو کې لازمه مرسته وکړي.
۷- ښوونکی دې د لاندې پوښتنو په کولو او د زده کوونکو له لوري په ځوابولو سره ارزونه وکړي:

- هوسۍ ولې د کوچي کېږدۍ ته پناه یوړه؟
- کوچي ولې سلطان محمود ته په هغه شیبه کې د هوسۍ له ورکولو څخه ډډه وکړه؟
- سلطان محمود ولې له کوچي څخه هغه شیبه د هوسۍ په اخیستلو کې له زور څخه کار وانخیست؟
- کله چې سلطان محمود له کوچي څخه وغوښتل چې له ده څخه څه وغواړي، کوچي څه وغوښتل اوولې؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د خپلې کورنۍ له غړو او یا نورو مشرانو څخه د داسې یوې پېښې په اړه معلومات ولیکي چې کله چا له نورو څخه پناه اخیستې وي او هغوی یې ننګه او دفاع کړې وي.







# رنګونه (خبرې اترې)





• ستاسو کوم ډول رنګونه خوښیږي؟

که چېرې خپل شاوخوا ته وګورو، ډول ډول طبیعي او مصنوعي رنګونه به مو تر سترګو شي. همدغه رنګونه دي چې هر یو یې ځانته جلا جلا بڼکلا را منځ ته کړې ده. د رنګونو ماهرین د خپلې پوهې او مسلکي ورتیا له مخې لا نور هم زیار باسي چې بېلابېل رنګونه را منځته کړي. همدارنګه د مختلفو رنګونو له یو ځای کېدو څخه د خپلې خوښې رنګونه جوړوي او په ترکیبي رنګونو کې ترې کار اخلي.

موږ په دې لوست کې د رنګونو په باره کې د خبرو اترو برخه راوړې ده چې زده کوونکي له یوې خوا د رنګونو په ډولونو او ګټه پوه شي او له بلې خوا د ژبې په برخه کې دوی په اسانه خبرې اترې وکړای شي.

جان محمد: زموږ لوست د رنګونو په باره کې دی. موږ دوه تنه به د رنګونو په باره کې خبرې وکړو او تاسو را ته غوږ ونیسئ. ښه نو له ما سره به څوک خبرې اترې وکړي؟

ایمل: زه به له تا سره ودرېږم. ته پوښتنه کوه او زه به ځواب درکوم.

جان محمد: نه، نه زه له تا سره د رنګونو په هکله خبرې کوم. دواړه به خبرې کوو. وګورئ موږ او تا سو هره ورځ په کور کې، له کور څخه د باندې په ځمکو او باغونو کې هر ډول رنګونه وینو او هر شی په خپل رنګ پېژنو. رنګونه د شیانو په پېژندنه کې ښه مرسته کوي.

ایمل: رنګونه په دوه ډوله دي، طبیعي رنګونه او مصنوعي رنګونه

طبیعي رنګونه هغه دي چې خدای ﷻ شیانو ته ورکړي دي او مصنوعي په کار خانو کې د انسان په علم او پوهه د هغه په لاس جوړېږي. د ساري په توګه په کارخانو کې چې کوم شی جوړېږي، نو یو رنګ خو خامخا ورکوي.

جان محمد: موږ ډول ډول رنګونه لرو، لکه: تور، سپین، ژېړ، سور، شین، ګلابي، نخودي، نسواري او داسې نور اصلي، مصنوعي او ترکیبي رنګونه.

ایمل: موږ په خپله باغچه کې د ګلانو ډول ډول بوټي کېنولي دي. رنګارنګ ګلان لري، خو ته ووایه چې ګلان یوازې د ښایست لپاره دي او که څه نوره ګټه هم ترې اخیستل کېږي؟

جان محمد: په کومو هېوادونو کې چې ګلان زیات وي له ډول ډول ګلانو مختلف عطرونه هم جوړوي. له دغه ګلانو څخه به یې پخوا رنګونه هم جوړول او ټوکران به یې پرې رنګول، خو اوس مصنوعي رنګونه په کارخانو کې جوړېږي او د ټوکرانو د رنګولو لپاره ترې ګټه اخلي. ایمل: خو دا راته ووایه چې ستا کوم رنګ خوښیږي؟

زما خو خپله ابي رنګ خوښیږي.

جان محمد: زما ټول رنګونه خوښیږي، ځکه چې د ښکلا لپاره دي.

هغه رنګونه ښه دي چې سترګو ته زیان و نه رسوي.

زه تېز رنګونه نه استعمالوم.

ایمل: دا ځکه ځیني خلك په اوړي کې چې هوا ډېره ګرمه وي، عینکې کاروي. هغه کالي نه کاروي چې رنګ یې ډېره تودوخه جذبوي، لکه تور رنګ.

جان محمد: هو! کنه ما په خپله د سترګو د ساتلو لپاره یوه جوړه عینکې اخیستې دي.

ایمل: زه به یوه وروستۍ خبره در ته وکړم، که رنګونه نه وای، نو دنیا به بې رنګه وای، وګورئ دا رنګارنګ ګلان څومره د سړي فکر خوشحاله ساتي.

جان محمد: نو باید موږ او تاسو هم د ښوونځي په باغچه کې ګلان وکرو، ګلان او د هغو بوټي خراب نه کړو.
ایمل: زه خو وایم چې هم به لوست وایو او هم به ګلان وکرو. نه یوازې په ښوونځي کې، بلکې د خپلو کورونو په باغچه کې هم ګلان کرو.
جان محمد: دا خو دې ښه خبره وکړه، خپلو دوستانو ته به هم ووایو چې خپلې سیمې سمسورې کړي. په کومو هېوادونو کې چې ګلان زیات کرل کېږي، هم یې سیمه ښکلې وي او هم ترې عطر جوړوي او هم ترې د شاتو مچۍ استفاده کوي.
ایمل: هو کنه! د شاتو مچۍ له ګلانو شېره راټولوي او بیا شات جوړوي چې دا د ګلانو بله ګټه ده.
جان محمد: ایمل جانه ترکیبي رنګونه څنګه جوړېږي؟
ایمل: دومره ډېر پرې نه پوهېږم، خو مختلف رنګونه یو ځای کوي.
او یو بل ډول رنګ ترې جوړوي. نقاشان او رسامان په عمومي توګه له ترکیبي رنګونو څخه په خپلو رسمونو کې ډېر کار اخلي.

د متن لنډیز:
رنګونه په دوه ډوله دي:
طبیعي رنګونه او مصنوعي رنګونه. طبیعي او مصنوعي رنګونه دواړه ډول ډول دي او د جنسونو او شیانو په رنګ او ښکلا کې مهم ارزښت لري.
ښه رنګونه هغه دي چې هم ښه ښکلا ولري او هم سترګو ته زیان و نه رسوي.
رنګونه د هر چا خوښیږي، ځکه له دغو رنګونو څخه د تولیداتو، ټوکرانو او د ودانیو په رنګولو کې کار اخلي. رنګونه ښکلا را منځ ته کوي او ښکلا د هر چا خوښیږي، رنګونه ډېر ډولونه لري چې ځینې په دې ډول دي :تور، سپین، سور، زرغون، ګلابي، نسواري، بنفش، نخودي، ابي، اسماني او نور.



## فعالیتونه

۱- د خبرو په وخت کې دې زده کوونکي غوږ ونیسي چې د کلمو په سم تلفظ او د جملو په جوړولو پوه شي.
۲- زده کوونکي دې د خبرو اترو په وخت کې مشکل لغتونه یاد داشت کړي او د محاورې په پای کې دې له ښوونکي څخه د هغو پوښتنه وکړي.

۳- زده کوونکي دې له خبرو وروسته د رنګونو د ارزښت په هکله څو جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا دې څو تنه د خپلو ټولګیوالو په استازیتوب نوموړې جملې و وایي.
٤- څو زده کوونکی دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د رنګونو د اهمیت او ارزښت په هکله دې خپلو ټولیګوالو ته خبرې وکړي.

٥- یو زده کوونکی دې د تختې مخې ته راشي، د څو طبیعي او مصنوعي رنګونو نومونه دې پر تختې و لیکي. نور زده کوونکی دې په خپلو کتابچو کې هغه په جملو کې استعمال کړي. بل زده کوونکی دې په وار سره دغه جملې ټولګیوالو ته ووایي.
٦ - څو تنه زده کوونکې دې د ټولګي مخې ته ورشي، د ایمل او جان محمد له خبرو اترو څخه په ګټه اخیستلو سره دې د رنګونو په اړه خبرې وکړي.

۷- څو زده کوونکي دې د هغو رنګونو په هکله خبرې وکړي چې هغه یې خوښیږي او د خوښیدو لامل دې هم روښانه کړي.
۸- څو زده کوونکي دې ووایي چې له دې وروسته په خپلو باغچو او دېرو کې د ګلانو د کرلو په باره کې څه تصمیم لري؟
۹- څو زده کوونکي دې ووایي چې له ګلانو څخه له ښکلا پرته د نور څه شي لپاره ګټه ورڅخه اخیستل کیږي.



## کورنی دنده

هر زده کوونکی دې د خپل انګړ یا د کوم نژدې باغ د ګلانو او د هغوی د رنګونو په هکله څو کرښې ولیکي په بل درسي ساعت کې دې ټولګیوالو ته ووایي.





# د لیک ډولونه







- تاسې کله خپلو دوستانو یا خپلوانو ته لیک لیکلی دی؟

- لیکونه د کومو موخو لپاره لیکل کېږي؟

د لیک له ابجاد نه وروسته د لیکونو لړۍ هم د انسانانو د ضرورت پر بنسټ را منځ ته شوې ده. د یو بل د حال له خبریدو او ځینو ضروري غوښتنو لپاره لیکونه لیکل کېږي او مقابل لوري ته لیږل کېږي. لیکونه به پخوا د استازي په لاس استول کېدل. بیا په را وروسته وختونو کې پوسته خانې جوړې شوې چې د ریل، موټر او الوتکې په وسیله به یې لیکونه وړل. اوس برېښنا یي لیکونه د انټرنېټ له لارې لیږل کېږي چې په هماغه شیبه کې رسېږي.

## د ليکونو ډولونه

ليکونه د ليکنو يو ځانګړی ډول دی چې معمولاً د بڼې او شکل له مخې په دوو ډولونو ويشل کېږي:

شخصي ليکونه

رسمي ليکونه

۱- شخصي ليکونه: هغه دي چې د وګړو تر منځ د بېلا بېلو اړيکو او علايقو له مخې د ډول ډول موخو، افکارو او نظرياتو د تبادلې لپاره ليکل کېږي.

سره له دې چې د شخصي ليک ليکنه تر ډېره حده د اشخاصو په ځانګړي ذوق پورې اړه لري، خو د ليکوالی د اصولو او قواعدو له مخې هره معياري ليکنه بايد په يو ځانګړي ليکني چوکاټ کې تر سره شي، د يو معياري شخصي ليک په ليکني چوکاټ کې لاندې برخې شامليږي:

۱- خطاب

۲- سريزه

۳- اساسي مطلب

٤- وروستی هيله

٥- وروستی خطاب

٦- لاسليک

دلته يې هره برخه په لنډ ډول در پېژنو:

۱- خطاب:

د ليک لومړۍ برخه ده چې د مقابل لوري (هغه چې ليک ورته ليکل کېږي) نوم تخلص او د معنوي ټولنيز مقام يادونه کېږي او د اړيکو د نوعيت له مخې اړونده کلمې ورته ليکل کېږي، لکه ګران ورور، مهربان پلار، مهربانه مور، خواخوږی دوست او.....

۲- سريزه (مقدمه):

د ليک په مقدمه کې ليکونکی لومړی خپل سلامونه او درناوی وړاندې کوي او د مقابل لوري د روغتيا، خوښۍ، هو ساينې او برياليتوب هيله څرګندوي او د خپلې روغتيا ډاډ ورکوي.

۳- اساسي مطلب د لیک هغه برخه ده چې لیکونکی مقابل لوري ته خپل فکر او مقصد لېږدوي. دا د لیکنې اساسي موخه او هدف دی چې لیکوال غواړي خپل مقابل لوری پرې پوه کړي.
د لیک په دې برخه کې چې هر څو موضوعګانې وي، هر یوه په ځانګړي پراګراف کې بیانیږي. خو د هر پراګراف وروستۍ جمله باید له راتلونکي پراګراف سره د زنځیر د کړۍ په څېر اړیکه ولري.

٤- د لیک په وروستی برخه کې یوځل بیا مقابل لوري ته درناوی وړاندې کیږي او له هغه څخه د خپل احوال د ژر ژر رالیږلو  او د هغه نورو خپلوانو او دوستانو ته د  سلامونو او درناوي د رسولو هیله کوي او له مقابل لوري څخه دا هیله او غوښتنه کوي چې که ده ته د کوم خدمت او چارې د سر ته رسولو اړتیا وي، د توان او ځواک په اندازه ورته  د چمتووالي ژمنه کوي.

۵- وروستی خطاب:
په وروستي خطاب کې لیکونکی له مقابل لوري سره په ډېرو خوږو کلمو لکه:
ستاسې ورور، ستاسې زوی، ستاسې ملګری او..... خدای پاماني کوي او بیا له معمول سره سم د ((په درناوی)) یا ((په درنښت))، ((په احترام))، ((په ډېره مینه)) او..... خپل لیک پای ته رسوي.

٦- لاسلیک:
 د لیک په پای کې لیکونکی خپل نوم لیکي او بیا لاسلیک کوي، تر لاسلیک وروسته د لیکنې نېټه لیکي. ځینې لیک لیکونکي د لیک تر لیکلو د مخه د کاغذ د پاڼې پر کیڼ اړخ او څنګ کې خپل نوم، د لیکنې نېټه او ځای لیکي.
د لیک یوه بیلګه:
ګرانه وروره!
له ډېرې مودې وروسته زما سلامونه ومنئ. د لیک تر لیکلو پورې روغ یم، خدای ﷻ دې وکړي چې تاسې له خپلې کورنۍ سره روغ اوسئ. زما سلامونه ټولې کورنۍ ته ورسوئ.
زموږ د ټولګي ازموینې تیرې شوې، په هغو کې مې په زړه پورې نومرې تر لاسه کړې او کلنۍ

ازموینه هم نژدې شوې ده. ما د کلنۍ ازموینې تیاری نیولی، شپه او ورځ خپل درسونه وایم.
- زما ټولګیوال جمال د سید امیر کاکا زوی هم ښه دی او زما سره یو ځای درسونه وایي. د هغه د روغتیا احوال یې کورنۍ ته ورسوه.
- د جان محمد په لاس مې څو کتابچې او په پښتو ژبه د څو لنډو کیسو کتابونه درلېږلي وو، که در رسېدلي وي، د هغو له رسیدو څخه مې د یو لیک په واسطه خبر کړئ.
- نور مو په خدای جل جلاله سپارم، دوستانو ته سلامونه ورسوئ. خوشحاله اوسئ.
ستاسو کشر ورور حمید الله

لاسلیک نېټه پته: کابل، ده بوري، د سید جمال الدین دارالمعلمین. په شخصي لیکونو کې ډیره مهمه داده چې له اوږدو جملو څخه ډډه وشي. په لنډ ډول خپل مطلب ولیکي.
اوس چې نړۍ پرمختګ کړی دی انټرنېټي شبکې رامنځ ته شوي، د خلکو ستونزې د لیکونو په لېږلو کې له منځه تللي دي. اوس په پوستو کې او یا د چا په لاس د لیکونو د لېږلو پر ځای له برېښنا لیکونو څخه کار اخلي چې مقابل لوري ته لیکونه د سترګو په رپ کې رسېږي.

## رسمي لیکونه:

رسمي لیکونه له لوړ مقام څخه ښکته ادارو ته د فرمان، احکامو او مقررو په توګه او دغه راز د دولتي ادارو تر منځ د مکتوب، استعلام او پیشنهاد (وړاندیز) په توګه لیکل کېږي.
په استعلام کې یوه اداره له بلې څخه د یوې موضوع په هکله معلومات غواړي او په پیشنهاد کې یوه اداره لوړ مقام ته د یوې موضوع په هکله وړاندیز کوي او بیا د هماغې لارښوونې له مخې کار کوي.
فرمان، احکام او مقررې د لوړو مقاماتو له خوا وي چې دولتي اداري یې د هغوی په تطبیقولو او عملي کولو کې مکلفیت لري.
پیشنهاد، استعلام او مکتوبونه د رسمي او غیر رسمي ادارو ترمنځ د خپلو او مراجعینو د کارونو د سرته رسولو لپاره وي.

د متن لنډيز:

ليکونه په دوه ډوله دي:

شخصي ليکونه او رسمي ليکونه

موږ په دې لوست کې تاسوته يوازې شخصي ليکونه در پيژنو.

شخصي هغه ليکونه دي چې خلك يې د ورځنيو ستونزو د حال او احوال د معلومولو لپاره ليږي. په دې ليکونوکې خبرې په ډېر لنډ ډول ليکل کېږي او هر ليك په شپږو برخو کې لنډېوو، د بېلگې په ډول:

د کرښې پيل لومړی: د هغه چا نوم ليکل کېږي چې ليك ورلېږو.

دويم: مقابل لوري ته د خپل احوال خبر ليکو او د هغوی د احوال پوښتنه کوو.

دريم: خپل مطلب په لنډ ډول په جلا جلا پراگرافونو کې ليکو.

څلورم: په وروستۍ هيله کې د ځواب غوښتنو خبره ليکي.

پنځم: خپل نوم او پته ليکو.

شپږم: خپل لاسليك او نېټه ليکو.




ښوونکی دې د کتاب متن په لوړ غږ و لولي، ټول زده کوونکي دې ورته غوږ ونيسي او متن ته دې د کلماتو د سم تلفظ لپاره پاملرنه وکړي.

- له هغه وروسته زده کوونکي د ښوونکي په لارښوونه يو ځل د کتاب متن په چوپه خوله مطالعه کوي. که په کومو لغتونو او جملو نه پوهېږي، هغه دې خپله کتابچه کې په نښه کړي او له ښوونکي دې ويپوښتي.

- څو زده کوونکي دې په وار سره پورته شي چې د کتاب له مخې لوست ولولي، که ستونزه موجوده وي، ښوونکی دې لارښوونه وکړي.

۲- یو زده کوونکی دې د کتاب له مخې ٤یا ٦ لغتونه پر تختې ولیکي. نور زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې و لیکي.له معنا وروسته دې هغه په جملو کې استعمال کړي.
وروسته دې هر زده کوونکی په وارسره خپلې جملې ټولګیوالوته ولولي.
۳- هر زده کوونکي دې یویوشخصي لیک په خپله خوښه ولیکي او په وار سره دې په ټولګي کې واوروي.
څو زده کوونکي دې د ټولګي په مخکې ووایي چې له شخصي لیکونو څخه مو څه زده‌کړل؟
شخصي لیکونه او رسمي لیکونه څه توپیر لري؟
څو زده کوونکي دې د شخصي لیکونو د ارزښت په هکله خبرې وکړي.
٤-زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې یو شخصي لیک ولیکي او بیا دې وروسته په وار سره د ټولګي په مخکې ووایي.
- یو زده کوونکی دې پورته شي، د خپلې کتابچې یو لیک دې ولولي، بل زده کوونکی دې د هغه تیروتنه سمه کړي، ښوونکی دې هغوی ته لارښوونه وکړي.
٥- څو زده کوونکي دې ووایي چې له دې وروسته به خپلو دوستانو ته څه ډول لیکونه لیکي او د لیک په لیکلو کې به کومې برخې په پام کې نیسي؟
٦ـ یو زده کوونکی دې نورو زده کوونکو ته د متن یو پراګراف د املاء په توګه ووایي او نور دې په خپلو کتابچو کې ولیکي، بیا دې هر زده کوونکی لیکل شوی متن د کتاب له متن سره پرتله کړي.
ـ یوه ډله زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې پنځه فعلونه په جملو کې وکاروي او بله ډله دې پنځه صفتونه په خپلو کتابچو کې وکاروي، کله چې دا فعالیت پای ته ورسېد، بیا دې د هرې ډلې څخه څوکسه خپل فعلونه او صفتونه چې په جملو کې یې کارولي دي، نورو ټولګیوالو ته ووایي.




هر زده کوونکی دې په کورکې په خپلو کتابچو کې ملګري ته یو لیک ولیکي او په بل درسي ساعت کې دې خپلو ټولګیوالو ته ولولي.



اتلسم لوست

# د آزادۍ پیغام



ـ تاسې آزادي څه ته وایئ؟

ـ که یو وګړی، ټولنه یا هېواد آزادي ونه لري، له کومو ستونزو سره به مخ وي؟

آزادي هغه ستر نعمت دی چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ له خوا پر وګړو، ټولنو او هېوادونو یې لورینه شوې ده، خو کله کله دغه ستر نعمت او دغه لورینه د زورواکو له خوا اخیستل کېږي، وګړي، ټولنې او هېوادونه له سترې بدمرغۍ سره مخ کېږي. په دې لوست کې مو یوه کیسه راوړې چې د خپلواکۍ ترلاسه کولو او د اسارت له بند څخه د خلاصون لاره پکې ښودل شوې ده.

وايي چې يو سوداګر د سوداګرۍ لپاره هندوستان ته د تللو هوډ او تکل درلود. تر روانېدو د مخه يې د کورنۍ ټول غړي راټول کړل. له هر يوه څخه يې وپوښتل چې له هندوستانه درته څه ډالۍ راوړم؟ هر يوه د خپلې خوښې شيان ورڅخه وغوښتل. په دې وخت کې يې خپل هغه طوطي ته ورپام شو چې په پنجره کې يې اچولی و.

له هغه يې هم وپوښتل چې تا ته له هندوستانه څه راوړم؟

طوطي په ډېر ادب ورته وويل: په پلانکي بڼ کې يو طوطي زما ملګری دی، هغه ته به زما سلامونه ورسوې.

سوداګر لاړ، د سوداګرۍ چارې يې ترسره کړې، د کورنۍ هر يو غړي ته يې خپل خپل سوغات واخيست. د طوطي سلامونه يې چې د هغه بڼ طوطي ته ورسول، هغه د ده د خبرو له اورېدو سره سم راپرېوته. سوداګر په دې کار حيران شو.

کله چې له سفره کورته راوګرځېد، هر چاته يې خپل خپل سوغاتونه وروسپارل. طوطي ورڅخه خپل ملګري ته د سلامونو رسولو او د هغه د پيغام په هکله وپوښتل.

سوداګر ورته ټوله کيسه وکړه. طوطي چې له سوداګر نه د هغه طوطي په حال خبر شو، په پنجره کې پورته شو او راپرېوت او داسې يې وښوده چې د خبر په اورېدو له خپګانه مړ شو.

سوداګر د دې حال په ليدلو ډېر خواشينی شو، خپل زوی ته يې وويل: طوطي له پنجرې رابهر کړه، بهر يې وغورځوه. کله چې د سوداګر زوی دا کار وکړ، طوطي والوت او د کور پر دېوال کېناست، سوداګر ته يې وويل:

تا ما ته تر هر چا ښه غوره ډالۍ راوړې وه. هغه ملګري طوطي راته په واقعيت کې د ژغورنې لار او د آزادۍ پيغام رالېږلی و، له تا څخه مننه کوم چې ماته دې راورساوه.

د متن لنډیز:

په کیسه کې ښودل شوي چې څه ډول په پنجره کې بندي طوطي له بند څخه د خلاصون لپاره یوه اغېزمنه لاره سنجولې او په نښه کړې ده، څه ډول چې له خپل بل هم نوعي څخه د آزادۍ پیغام ترلاسه کوي او هغه په عمل کې پلی کوي او د آزاد او خپلواک ژوند څښتن کېږي. د دې کیسې پیغام او مفهوم همدا دی چې د خپلواکۍ لپاره مبارزې او سرښندنې ته اړتیا شته. زیار او هلې ځلې په کار دي چې خپلواکي ترلاسه شي.




۱ـ ځو زده کوونکي دې د لوست متن په چوپتیا سره ولولي.

څو زده کوونکي دې په خپله خوښه لوست ولولي، نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي چې د کلمو او جملو تلفظ زده کړي.

۲ـ زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د متن لاندې لغتونه معنا او په جملو کې وکاروي، بیا دې ټولګیوالو ته ولولي.

وګړي، ټولنه، بڼ، سوداګر، ډالۍ، سوغات.

۳ـ څو زده کوونکي دې د ټولګي په وړاندې د لوست مفهوم په لنډه توګه ووایي.

- څو زده کوونکي دې ووایي چې د لوست له متن څخه یې څه نتیجه ترلاسه کړه؟

٤ـ څو زده کوونکي دې لاندې پوښتنې ته بېلا بېل ځوابونه ورکړي:

ـ که یوه ټولنه آزادي ونه لري، له کومو ستونزو سره به مخ شي؟

۵ـ زده کوونکي دې د آزادۍ تر سرلیک لاندې یو څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا دې خپلو ټولیګوالو ته ولولي.

۶ــ زده کوونکي دې په دوو ډلو وويشل شي، له هرې ډلې څخه دې په وار سره څو تنه پورته شي او د بلې ډلې له څو زده کوونکو څخه دې د هغو د مطالعې او نورو درسي بوختياوو په هکله پوښتنې وکړي او نور زده کوونکي دې ځوابونه ووايي.

۷ـښوونکی دې د متن يو پراگراف د املا په توگه ووايي، زده کوونکي دې په کتابچه کې وليکي او ښوونکی دې د زده کوونکو غلطۍ سمې کړي.

۸ــ څو زده کوونکي دې په هېواد کې د خپلواکۍ د اتلانو په هکله خبرې وکړي.

۹ــ څو زده کوونکي دې په خپل هېواد کې د خپلواکۍ د ورځې او ارزښتونو په هکله خبرې وکړي.

ــ يو زده کوونکی دې پر تختې يوه جمله وليکي، نور زده کوونکي دې نوموړې جملې ته په خپلو کتابچو کې منطقي پراختيا ورکړي او بيا دې څو تنه ټولگيوالو ته ووايي.

۱۰ــ د يوې ډلې يو زده کوونکی دې پورته شي د بلې ډلې له زده کوونکو څخه دې د کتاب متن له مخې پوښتنه وکړي او هغوی دې ورته د خپل استازي په واسطه ځواب ووايي.

ــ که چېرې يو هېواد آزادي ونه لري له کومو ستونزو سره به مخ شي. څو زده کوونکي دې په دې هکله خبرې وکړي.

ــ يو زده کوونکی دې تختې ته پورته شي، پر تختې دې د آزادۍ کلمه وليکي، بيا دې له نورو زده کوونکو څخه په وار سره غوښتنه وکړي چې د آزادۍ له کلمې سره نورې کومې کلمې مناسبت لري. زده کوونکي چې کومې کلمې ورته وايي او د موضوع په اړه وي هغه دې وليکي.




زده کوونکي دې د خپلواکۍ په اړه يوه يوه مقاله وليکي او په راتلونکي ساعت کې دې خپلو ټولگيوالو ته واوروي.



نولسم لوست

# نازو انا

ـ تاسې د هېواد په پخوانیو نومیالیو مېرمنو کې د چا له نامه سره بلد یاست؟

زموږ هېواد د تاریخ په اوږدو کې ډېرې نومیالۍ ښځې او نرینه علمي، فرهنګي او ټولنیز شخصیتونه په خپله غېږ کې روزلي دي. د دوی ویاړلې کارنامې د تاریخ په پاڼوکې خوندي دي. له دغو نومیالیو مېرمنو څخه یوه نازو انا ده چې د سیاست او ادب په دواړو ډګرونو کې ویاړلې کارنامې لري چې په دې لوست کې یې درپېژنو.

نازو انا زمونږ د هېواد د ملي مشر میرویس نیکه مور وه . دا نومیالۍ مېرمن په ۱۰۶۱هجري قمري کال د کندهار او کلات تر منځ ((تازي)) نومي ځای کې زېږېدلې وه.
پلار یې سلطان ملخي توخي نومیده چې له غزني څخه تر جلدکه پورې د پرتو قبیلو مشر و. ملخي توخي له کوچنیوالي څخه د خپلې لور د ښې پالنې او روزنې لپاره پوره پاملرنه درلوده. نازو دیني علوم او د نظم او نثر کتابونه په خپله کورنۍ کې له استاذانو څخه ولوستل او پوره عالمه او فاضله شوه. پلار یې هغه د کرم خان هوتک زوی ښالم خان ته په نکاح کړه او د هغه مېرمن شوه. خدا ی ﷻ څلور زامن ورکړل. مشر یې میرخان نومیده چې بیا د ا فغانانو ملي مشر او په میرویس خان نیکه مشهور شو.

نازو انا د خپل پلار او بیا وروسته د ښالم خان په کور کې د ژوند تر وروستۍ شېبې په دینداري، عدل، زړورتوب، سخاوت، مېلمه پالنې، زړه سوي او مهربانۍ ډېره مشهوره وه.
د پټې خزانې مؤلف محمد هوتک لیکلي چې مېرمن نازو د خپلو اولادونو روزنې او تربیې ته ډېره پاملرنه کوله. د بیټ نیکه په هغو خبرو چې په خوب کې یې ورته کړې وې، ټینګ عمل کاوه او همېشه به یې خپل زوی میرویس خان ته دا خبره وریادوله او نصیحت به یې ورته کاوه چې: ((زویه د بیټ نیکه له قوله ستا په مخکې لوی کارونه دي چې لوی شې، د خدای ﷻ عبادت او د خلکو خدمت کوه، ته خدای ﷻ د لویو کارونو سرته رسولو ته پیدا کړی یې چې نور خلک ستا په سیوري کې آرام ژوند وکړي.))

وایي چې میرویس خان نیکه به د خپلې مور دا نصیحت همېشه یاداوه. کله چې یې په ۱۱۱۹ هجري قمري کال خپل هېواد د ګورګین له فساد، ظلم، فتنې او سلطې څخه خلاص کړ، نو یې د شکر سجده وکړه او ویې ویل: ((خدایه! دا هغه کار و چې ماته خپلې مور راسپارلی او د هغه د سرته رسولو نصیحت یې راته کړی و.))
نازو انا سربېره پر دې چې پرهیزګاره وه، خپل عمر یې د خدای ﷻ په عبادت او د دیني علومو په لوستلو او مطالعه تېراوه. نازو انا شاعره او ادیبه هم وه. وایي چې د پښتو شعرونو دیوان یې درلود چې دوه زره بیته و. ډېر خواږه مناجات او نور ډول ډول شعرونه پکې وو.

د مېرمن نازو د شعرونو دیوان لاتر اوسه لاس ته نه دی راغلی. محمد هوتک په خپل کتاب ((پټه خزانه)) کې د هغې یوازې یوه څلوریزه را اخیستې ده چې د نوموړې شعري قوت ورڅخه ښه څرګندېږي او هغه دا ده:

سحرګه وه د نـــــــــرګس لېمه لانده　　　څاڅکي، څاڅکي یې له سترګو څڅېده
ماوې څــه دي ښکلیه ګله ولې ژاړې؟　　　ده وې ژونـــــد مې دی یوه خوله خندیده

د دغې نومیالۍ مېرمنې همدا ویاړ بس دی چې ټول افغانان یې د ((انا)) په درانه نوم یادوي او افغان ولس ته یې د ملي مشر میرویس نیکه په څېر ننګیالی او توریالی زوی وړاندې کړی چې نوم او کارنامې یې زموږ د هېواد په تاریخ کې په زرینو کرښو لیکل شوې دي.

موږ د تاریخ په اوږدو کې ښځې شاعرانې درلودې چې له بده مرغه د هغوی شعرونه او اثار د نرینه وو په څېر د وخت په اوږدو کې د بېلا بېلو لاملونو له امله له منځه تللي دي.

اوس هم په هېواد کې ډېرې ښځې شاعرانې او لیکوالې لرو چې د پښتو ادب برخه یې بډایه کړې ده.

د متن لنډېز:

نازو انا زموږ د هېواد د ملي مشر میرویس نیکه مور، یوه پرهېزګاره، عالمه، فاضله او ادیبه مېرمن وه.

په خپل وخت کې په دینداری، عدل، زړور توب، سخاوت او مېلمه پالنې ډېره مشهوره وه او د خپلو اولادونو روزنې ته یې ځانګړې پاملرنه درلوده. د ژوند ډېره برخه یې په عبادت او ریاضت تېروله.هر وخت به د دیني او ادبي علومو په زده کړه بوخته وه. د پښتو ژبې تکړه او خوږ ژبې شاعره وه، د شعر دیوان یې درلود، خو تر اوسه نه دی ترلاسه شوی. یوه څلوریزه یې محمد هوتک په پټه خزانه کې خوندي کړې او تر موږ یې رارسولې ده.



## فعالیتونه

۱ـ د ښوونکي له خوا د متن له لوستلو، لازمو څرگندونو او توضیحاتو وروسته دې ځینې زده کوونکي د متن یو یو پراگراف په لوړ غږ ولولي.

۲ ـ ځینې زده کوونکي دې د ټولگي مخې ته راوبلل شي چې د شعر مفهوم په خپلو الفاظو کې نورو ټولگیوالو ته ووایي.

۳ ـ زده کوونکي دې دغو پوښتنو ته په خپل خپل وار ځوا بونه ووایي :

ـ مېرمن نازو د څه ډول اخلاقو او شخصیت خاونده وه؟

ـ مېرمن نازو به میرویس نیکه ته څه ویل او څه نصیحت یې ورته کاوه؟

ـ په پټه خزانه کې یې د مېرمن نازو په اړه څه لیکلي دي؟

٤ـ زده کوونکي دې پر دریو ډلو وویشل شي: یوه ډله دې په متن کې راغلي خاص نومونه، بله دې عام نومونه او بله ډله دې صفتونه پیدا کړي او په خپلو کتابچو کې دې یې ولیکي، بیا دې یې په مناسبو جملو کې هم وکاروي.

٥ـزده کوونکي دې لاندې لغتونه معنا او په خپلو کتابچو کې په جملو کې وکاروي:

سخاوت، لیمه، ښاخکې، ننگیالی، توریالی ، ریاضت

٦ـ په دې لاندې جملو کې تش ځایونه په مناسبو کلمو سره ډک کړئ:

ـ نازو انا زموږ د ملي مشر...................... مور وه.

ـ نازو انا عالمه، فاضله او.............................. مېرمن وه.

ـ نازو انا د شعرونو..................... هم درلود.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د پښتو ادب د یوې بلې مېرمنې په اړه یوه لیکنه وکړي او بله ورځ دې په پښتو درسي ساعت کې خپلو ټولگیوالو ته واوروي.





# د قید ډولونه




تاسو د مخه د فعل په لوست کې ((فعل: د جملې مهمه برخه)) تر سرلیک لاندې ولوستل چې ژبه له غږونو څخه جوړه شوې او له غږونو څخه کلمې جوړېږي او کلمې په یوه ژبه کې بېلا بېل ډولونه لري، لکه: نومونه، صفتونه، ضمیرونه، فعلونه، قیدونه او نور.

په دې لوست کې به تاسو ته په لنډ ډول قیدونه دروپېژنو.

-قید څه ته وایي؟

-قیدونه په څو ډوله دي؟

قیدونه هغه کلمې یا ژبني توکي دي چې په یوه جمله کې د فعل معنا او څرنګوالی څرګندوي. یا په بله وینا: قیدونه هغه ژبني عناصر دي چې د یو فعل د پېښېدلو څرنګوالی ښیي. همدا څرنګوالی د فعل د پېښېدو ځای او مهال ټاکي او یا یې څرګندتیا، اړوندتیا، ټینګار او داسې نورې ځانګړنې څرګندوي.

## د قید ډولونه:

په پښتو ژبه کې قیدونه په دوو ډولونو: اصلي او غیر اصلي وېشل شوي دي.
دلته یې هر ډول په ځانګړې توګه درپېژنو:
الف_ اصلي قیدونه:
اصلي قیدونه په پښتو کې دا لاندې ډولونه لري:
۱_د زمان او مهال قید: چې د وخت او مهال له مخې د یو فعل پېښېدنه ښیي، لکه: اوس، د مخه، پخوا، وړاندې، سملاسي، ورمه، پرون، نن، سبا، دوخته، ناوخته او نور.
۲_ د ځای یا مکان قید: د یو فعل پېښېدنه د ځای او چاپېریال له مخې څرګندوي، لکه: دلته، هلته، مخکې، وروسته، شاته، مخته، ښکته، پورته، لاندې، باندې، اخوا، دېخوا، له لېرې، له نژدې، مخ ښکته، مخ پورته، له پاسه، له لاندې او نور.
۳_ دڅرګندونې او د ټینګار قیدونه: چې د یو فعل د پېښېدنې د څرګندتیا حالت یا ټینګار ښیي، لکه: په ښکاره، په پټه، په زغرده، په ډاګه، په مېړانه، په نره، په خړو سترګو، په جګو سترګو، زړه نازړه، په ناسته، په ولاړه، په منډه، هرو مرو، خوشې په خوشې، څه نا څه، لږ و ډېر، په کلکه، په ټینګه، غاړه په غاړه او نور.

ب_ غیر اصلي قیدونه:
په پښتو کې ځینې داسې قیدونه شته چې کله له لازمي فعل سره راشي، هلته د جملې د فاعل لپاره ګردانېږي، خو که له متعدي فعل سره راشي، په دغسې حالت کې بیا د جملې د مفعول لپاره ګردانېږي.
د یادونې وړ ده چې دغه ګردان (اوړون) د جنس، عدد او شخص له مخې ترسره کېږي.

۱_له لازمي فعل سره:

| ناتېره زمانه | تېره زمانه |
|---|---|
| (مفرد) زه (نرینه) دروند دروند ګرځم | زه (نرینه) دروند ګرځېدم |
| زه (ښځینه، مؤنث) درنده درنده ګرځم | زه (ښځینه، مؤنث) درنده درنده ګرځېدم |
| (جمع) موږ (نرینه) درانده دارنده ګرځو. | موږ (نرینه) درانده درانده ګرځېدو |
| موږ (ښځینه) درندې درندې ګرځو | موږ (ښځینه) درندې درندې ګرځېدو |

همداسې تر پایه (ته، تاسې، دغه...) کې هم ګردانېږي.

**یادونه**: په پورتنیو بېلګو کې فعل لازمي دی او قید (دروند _ دروند) د جملې د فاعل لپاره تصریف شوی دی.

۲_ له متعدي فعل سره:

| ناتېره زمانه | تېره زمانه |
|---|---|
| (مفرد) تور ما (نرینه) پوخ پېژني | تور زه (نرینه) پوخ پېژندلم |
| تور ما (ښځینه) پخه پېژني | تور زه (ښځینه) پخه پېژندلم |
| (جمع) تور موږ (نرینه) پاخه پېژني | تور موږ (نرینه) پاخه پېژندلو |
| تور موږ (ښځینه) پخې پېژني | تور موږ (ښځینه) پخې پېژندلو |

همداسې تر پایه (تا، تاسې، دغه...) هم ګردانېږي.
د یادونې وړ ده چې په پورتنیو بېلګو کې فعل متعدي او قید (پوخ) د جملې د مفعول لپاره ګردان شوی دی.
له پورتنیو بېلګو څخه څرګندېږي چې ځینې قیدونه هم ګردانېږي. په دې مفهوم، کله چې فعل لازمي وي قید د جملې د فاعل لپاره د جنس او عدد له پلوه ګردانېږي او کله چې د جملې فعل متعدي وي، نو هلته بیا قید د جملې د مفعول لپاره د جنس او عدد له مخې ګردانېږي.

**د متن لنډيز:**

قيد هغه کلمه ده چې په يوه جمله کې د فعل څرنګوالی راښيي. په پښتو ژبه کې قيدونه په دوه ډوله دي. ۱ــ اصلي ۲ــ غير اصلي.

الف: اصلي قيدونه هغه دي چې نه ګردانېږي، لکه: د وخت، ځای او ټينګار قيدونه چې مثالونه يې په متن کې شته.

ب ــ غير اصلي قيدونه:

دا هغه قيدونه دي چې کله له لازمي فعل سره راشي، د جملې د فاعل لپاره ګردانېږي او که چېرې له متعدي فعل سره راشي، بيا د متعدي فعل لپاره ګردانېږي.

## فعاليتونه

۱ــ زده کوونکي دې متن لومړی له ځان سره ورو ولولي، بيا دې څو تنه د ټولګي په مخکې په وار سره په لوړ آواز ولولي چې نور زده کوونکي د کلمو تلفظ او د لوستلو ډول ته متوجه شي.

۲ــ زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د کتاب له متن څخه څو قيدونه وليکي او په خپلو الفاظو دې په جملو کې وکاروي.

ــ يو زده کوونکی دې د کتاب په جملو کې له متن څخه څو قيدونه پر تختې وليکي، د بلې ډلې زده کوونکي دې يې په وار سره په جملوکې وکاروي.

۳ــ له يوې ډلې څخه دې څو زده کوونکي په وار سره پورته شي، د مقابلې ډلې زده کوونکي ته دې يوه داسې جمله ووايي چې قيد پکې راغلی وي، بل زده کوونکی دې نوموړی قيد معلوم کړي چې کوم ډول قيد دی.

٤ــ څو زده کوونکي دې د اصلي قيدونو په هکله، څو زده کوونکي دې د غير اصلي

قیدونو په هکله خبرې وکړي. یوه یوه بېلګه دې ووايي.
ـ ځو زده کوونکي دې په خپله خوښه د ځای قیدونه ووايي او په جمله کې دې وکاروي.
ـ ځو زده کوونکي دې په خپله خوښه د وخت ځینې قیدونه ووايي او په جمله کې دې وکاروي.
۵ـ یو زده کوونکی دې تختې ته لاړ شي، پر تختې دې یوه داسې جمله ولیکي چې د وخت قید پکې راغلی وي. بل زده کوونکی دې هغه جمله په سوالیه او منفي واړوي.
۶ـ یو زده کوونکی دې لاندې قیدونه پر تختې ولیکي، نور زده کوونکي دې نوموړي قیدونه د وخت، ځای او ټینګار له مخې په یوه یوه کرښه کې توضیح او په خپلو کتابچو کې ولیکي: بل کال، پرون، دلته، سخت، سبا، وخته، اخوا، له لېرې، پروسږکال، په ولاړه، په منډه.
۷ـ ځو زده کوونکي دې د قید د ګټو په هکله خبرې وکړي.
ـ یو زده کوونکی دې د املا په توګه نورو زده کوونکو ته د متن یو پراګراف ووايي، بیا دې نور زده کوونکي ولیکي، بیا دې زده کوونکي خپله لیکنه د کتاب له متن سره پرتله کړي.
ـ یو زده کوونکی دې په خپله خوښه پر تختې یوه جمله ولیکي او نور زده کوونکي دې هغې جملې ته په خپلو کتابچو کې پراختیا ورکړي او بیا دې ځو تنه د خپلو کتابچو له مخې ټولګیوالو ته ووايي. ښوونکی دې تېروتنې سمې کړي.
۸ـ زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د قید په هکله ځو کرښې ولیکي او بیا دې ټولګي والو ته ولولي.
ـ زده کوونکي دې کتاب بند کړي ځو داسې جملې دې ولیکي چې په هغو کې د قید بېلا بېل ډولونه راغلي وي، کله چې ولیکل شول بیا دې ځو کسه خپلو ټولګیوالو ته ووايي.

ـ څو زده کوونکي دې تختې ته ورشي په وار سره دې هر يو داسې يوه جمله وليکي چې د تېرې او راتلونکې زمانې فعلونه له قيدونو سره راغلي وي.

ـ يو زده کوونکی دې پر تختې يوه جمله وليکي چې قيد په کې راغلی وي له دې وروسته دې يو يو زده کوونکی نوموړې جمله په دريو ګونو زمانو کې په جملو کې وکاروي.

ـ زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې لاندې قيدونه په جملو کې وکاروي، بل کال، پرون، سبا، پاخه، پخې، درندې، اخوا، دېخوا، پروسږکال.

ـ زده کوونکي دې په دريو ډلو ووېشل شي، يوه ډله دې د وخت قيدونه، بله ډله دې د ځای قيدونه او بله ډله دې د ټينګار قيدونه په خپلو کتابچو کې وليکي او په جملو کې دې وکاروي.

ـ اوس دې له هرې ډلې څو کسه خپلې ليکنې نورو ټولګيوالو ته ولولي او ښوونکی دې د هغوی تېروتنې ورسمې کړي.

ـ دوه تنه دې په خپله خوښه پورته شي، يو تن دې خپلو ټولګيوالو ته اصلي قيدونه او بل دې غير اصلي قيدونه خپلو ټولګيوالو ته ووايي. ښوونکی دې د هغوی تېروتنې ورسمې کړي او فردي لياقت دې په پام کې ونيول شي.




زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې څو داسې جملې وليکي چې د زمان او ځای او ټينګار له مخې پکې قيدونه کارول شوي وي. په بل درسي ساعت کې دې خپلو ټولګيوالو ته ووايي او په هغو کې دې ورته بېلابېل قيدونه څرګند کړي.



يوويشتم لوست

# ننگرهار

ـ تاسو د هېواد ولايتونه پېژنئ؟

ـ کومو ولايتونو ته تللي ياست، په اړه يې خبرې وکړئ؟

- په تاسو کې چا د ننگرهار ولايت ليدلى دى؟

زموږ گران هېواد افغانستان اوس ٣٤ ولايتونه لري چې هر يو يې د هېواد د يوې مهمې برخې په توگه له ځانگړي تاريخي، فرهنگي، اقتصادي او ټولنيز، ارزښت څخه برخمن دى. له دغو ولايتونو څخه يو هم د ننگرهار ولايت دى چې په دې لوست کې يې درپېژنو.

ننگرهار د هېواد په ختیځه برخه کې پروت لوی او مشهور ولایت دی. د دې ولایت تاریخي لرغونتیا پخواني آریایي تمدن او مدنیت ته رسېږي.
د ننگرهار یا نگارهارا د نامه یادونه له میلاد څخه څو پېړۍ د مخه په یو لرغوني مذهبي کتاب ((اوستا)) کې هم شوې ده.
ننگرهار له کابل، لغمان، کونړ او پکتیا ولایتونو سره گډه پوله لري او له کابل څخه د ۱۴۸ کیلومترو په واټن پروت دی.

دغه ولایت له علمي او فرهنگي پلوه ښه پرمختللی دی، پوهنې او مطبوعاتو پکې وده او پرمختگ کړی دی. په ننگرهار کې له (( ننگرهار)) پوهنتون سربېره شخصي پوهنتونونه، په مرکز او ولسوالیو کې په لسگونو لیسې، منځني او لومړني ښوونځي شته. په ننگرهار کې پر دولتي ورځپاڼې سربېره یو شمېر نورې آزادې خپرونې، مجلې او اووه نیزې او میاشتنۍ (مجلې او جریدې)، همدارنگه راډیوگانې او تلویزیونونه هم شته چې خپرونې کوي. په ننگرهار کې ډېر لرغوني تاریخي آثار او د لیدلو وړ ځایونه او سیمې شته، تر ټولو مهمه او مشهوره د جلال آباد ښار په درې کیلومترۍ کې د ((هډې)) سیمه ده چې لرغوني تاریخي آثار پکې لاس ته راغلي او له ستر تاریخي او فرهنگي ارزښت څخه برخمنه ده.دغه ښکلی او سمسور ښار د همیشه بهار په نوم شهرت لري او هر کال د نارنج گل په نوم په هغه ولایت کې مشاعره ترسره کېږي چې د هېواد زیاتره شاعران او لیکوالان پکې برخه اخلي. د دې ښار زیاتره ځوانان له شعر او شاعرۍ سره زیاته مینه لري او وگړي یې شعر او ادب ته په درنه سترگه گوري.

همدا راز په خوږیاڼو کې د مېملې تاریخي باغ، د جلال آباد په ښار کې سراج العمارت، د امیر شهید باغ، په درونټه کې لرغونې تاریخي سمڅې او غارونه او نور د لیدلو وړ ځایونه دي. ننگرهار د کرنې وړ پراخې کروندې، ښکلې او سمسورې درې، د اوبو ښې زېرمې، سیندونه، رودونه او کاریزونه لري. زیات شمېر وگړي یې په کرنه او مالدارۍ بوخت دي، خو دا چې یو سرحدي ولایت دی، سوداگرۍ او صنعتي چارو پکې پرمختگ کړی دی. د کابل ـ تورخم لویه لاره له ننگرهار

څخه تېرېږي. پر دې سربېره د ولایت له مرکز څخه ټولو ولسوالیو او له هغه ځایه کلیو او بانډو ته خامې او پخې لارې او سرکونه غځېدلي دي. د ننګرهار سویل لورته د ((سپین غر)) د غرونو لړۍ تر تورخم پورې رسېږي. ختیځ لور ته یې د خیبر او شمشاد د غرونو لړۍ پرته ده او په شمال ختیځ کې یې د ((کونړ)) لوی غر پروت دی.

د ننګرهار مرکز د جلال آباد ښار دی. دغه ولایت دا لاندې حکومتي اداري واحدونه (ولسوالۍ) لري: بهسود، سرخرود، چپرهار، رودات، کامه، ښېوه، دره نور، شېرزاد، حصارک، خوږیانې، پچیر او اګام، هسکه مېنه، کوټ، بټي کوټ، غني خېل، اچین، دور بابا، مهمند دره، ګوشته، لعل پوره، سپین غر اونور.

د ننګرها ر ولایت ته د ننګرهار کانال ځانګړی ارزښت ور کړی د ی. د دغه کانال په وسیله د ننګرهار ولایت ډېرې شاړې ځمکې آبادې شو ې او د سمسور ننګرهار په لا سمسورتیا او ښـکلا کې یې پوره ونډه اخیستې ده.په دغه لړ کې د هډې اوغازي آباد فارمونه په ځانګړې توګه د یادونې او ا رزښت وړدي.

د متن لنډیز:
ننګرهار ولایت زموږ د هېواد په ختیځه برخه کې پروت دی. د دې سیمې تاریخي لرغونتیا پخواني آریایي مدنیت ته رسېږي. د دغه ولایت مرکز د جلال آباد ښار دی. ننګرهار له علمي او فرهنګي پلوه ډېر پرمختللی ولایت دی. پوهنتونونه، ښوونېزې مؤسسې، زیات شمېر لیسې او نور لومړني او منځني ښوونځي لري. دلیدلو وړ ډېرتاریخي ځایونه، ښکلې او سمسورې سیمې لري.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په چوپه خوله ولولي، ستونزمنې کلمې دې په پنسل په نښه کړي، بیا دې زده کوونکي نوموړي لغتونه پرتختې ولیکي او ښوونکی دې یې معنا کړي. نور زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

ـزده کوونکي دې په ډلو وویشل شي، د یوې ډلې یو یو زده کوونکی دې د متن یو یو پراگراف په لوړ آواز ولولي، نور دې د کلمو او جملو تلفظ ته غوږ شي، ښوونکی دې لارښوونه وکړي.

ـ یو یو زده کوونکی دې د ننگرهار ولایت په اړه لنډې خبرې وکړي.

۲ـ زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د ننگرهار د تاریخي ځایونو د ارزښت په اړه څو کرښې ولیکي او بیا دې د ټولگیوالو په مخکې ووایي.

۳ـ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي:

ـ څوک ننگرهار ولایت ته تللی دی؟ که تللی وي له هغو څخه دې څو تنه د خپلې لیدنې په هکله څه ووایي.

ـ ننگرهار د هېواد له نورو ولایتونو سره د محصولاتو او موسم له پلوه څه توپیر لري؟

٤ـ ښوونکی دې زده کوونکي پر دوو ډلو ووېشي: یوه ډله دې په متن کې له راغلو څو فعلونو څخه جملې جوړې کړي او بله دې د متن څو صفتونه په جملو کې استعمال کړي او بیا دې د ټولگیوالو په مخ کې ولولي.



## کورنۍ دنده

هر زده کوونکی چې د هېواد هر ولایت ته تللی وي، د خپل سفر په اړه دې په خپله کتابچه کې څو کرښې ولیکي او په بل درسي ساعت کې دې ټولگیوالو ته ووایي.



دوه ویشتم لوست

# سیدال خان ناصر






ـ د هېواد له پخوانیو نومیالیو ملي شخصیتونو څخه څوك پېژنئ؟

ـ داسې څوك در معلوم دي چې له ګران هیواد څخه د دفاع لپاره یې توره او قلم دواړه کارولي وي؟

زموږ هېواد ګران افغانستان په خپله غېږه کې ډېر نومیالي، توریالي او فرهنګیالي بچي روزلي دي. په دوی کې داسې شخصیتونه هم وو چې که له یوې خوا یې د خپل هېواد او خلکو د دفاع، ساتنې او ژغورنې لپاره توري وهلې، نو له بله پلوه یې د خلکو د ذهنونو د راویښولو او روښانولو لپاره قلم هم چلولی دی. له دغو شخصیتونو څخه یو سیدال خان ناصر دی چې په دې لوست کې به د هغه په اړه ډېر څه زده کړئ:

سیدال خان ناصر د هوتکیانو په دوره کې د افغاني پوځونو نومیالی سرلښکر او د میرویس خان نیکه د ملي غورځنگ له ډېرو پیاوړو لارویانو او مخکښو څېرو څخه و. پلار یې ابدال خان باړیزی ناصر او د وازې خوا د ډیله نومې سیمې و. نوموړی د پښتنو د ملي مشر سلطان ملخي توخي هم مهالی او د دربار له نژدې باوري اشخاصو څخه و. په هغو ټولو جگړو او مقابلو کې یې فعاله ونډه درلوده چې سلطان ملخي توخي د هېواد د دفاع او ساتنې لپاره د یرغلگرو پر وړاندې کړې وو. د دوی کورنۍ هغه مهال چې سلطان ملخي توخي له غزني څخه ترجلدکه پورې واکمني درلوده، له وازې خوا څخه ((اتغر)) ته تللې او استوگن شوی و.

کله چې زموږ ملي مشر میرویس خان نیکه د صفویانو له ښکیلاکه د آزادۍ لپاره ملا وتړله، سیدال خان ناصر یې له ډېرو نژدې ملگرو او پلویانو څخه و. په دغه ملي مبارزه کې یې ډېره فعاله ونډه واخیسته، تر هغه چې په ۱۱۱۹ هـ. ق. کال بریالیتوب ته ورسېده او په کندهار کې د میر ویس نیکه په مشرۍ د افغانانو خپلواک حکومت جوړ شو.

سیدال خان ناصر د میرویس نیکه د واکمنۍ په دوره کې د افغاني پوځونو نومیالی او ننگیالی سر لښکروچې ډېرې سوبې یې وکړې او د لوړ نامه خاوند شو.

د میرویس نیکه تر مړینې وروسته چې کله یې زوی شاه محمود هوتک واکمن شو، نو غوښتل یې د اصفهان د نیولو په اړه د پلار وصیت پرځای کړي او صفویانو ته د عبرت داسې درس ورکړي چې بیا د افغانانو هېواد ته کاږه ونه گوري. سیدال خان ناصر د افغاني قواوو د سرلښکر په توگه له هغه سره ملگری و. په ایران کې یې د افغاني واکمنۍ د جوړښت او پاینښت په ټولو سوبو کې د یادونې او ستاینې وړ ونډه لرله. کله چې په ۱۱۳۷ هـ. ق. کال د شاه محمود هوتک له مړینې وروسته شاه‌اشرف واکمن شو، د واکمنۍ په ټوله دوره کې یې سیدال خان ناصر د افغاني قواوو سرلښکر و او د افغاني واکمنۍ د ټینگښت لپاره یې له ترکانو او روسانو سره په جگړو او مقابلو کې د ستاینې وړ سوبې ترلاسه کړې. کله چې افغاني واکمني د شاه اشرف په وژل کېدو په ایران کې له منځه ولاړه، سیدال خان ناصر په (۱۱٤۲ هـ. ق.) کال کندهار ته راغی. د شاه حسین هوتک په دربار کې د سرلښکرۍ دنده وروسپارل شوه. وروسته چې نادر افشار لومړی پر هرات او بیا پر کندهار بریدونه پیل کړل، د سیدال خان ناصر په مشرۍ افغاني لښکرو اووه، اته کاله پرله پسې په ډېره مېړانه د هغو مقابله وکړه چې په ۱۱۵۰ هـ. ق. کال نادر افشار د کندهار په نیولو برلاسی شو. سیدال خان ناصر د شاه حسین هوتک له زوی سره یو ځای د کلات په کلا کې تر دوو میاشتو کلا بندۍ وروسته د

نادر افشار د پوځونو په لاس ژوندی کښېووت. وايي کله چې یې د نادر افشار مخې ته وروست، نو هغه چې د دغه نومیالي سرلښکر له ویاړلو کارنامو، خبرواو د هغه له پرتمه ډکې څېرې او اغېزناکو سترګو ته یې د کتلو توان نه درلود، نو یې حکم وکړ چې ((د سیدال خان ناصر سترګې وباسئ، ځکه زه د ده له سترګو ډارېږم)) هماغه و چې دا ننګیالی او توریالی سرلښکر یې ړوند کړ. وروسته نادر افشار د هوتکو د واکمنې کورنۍ په ګډون ځینې پښتني کورنۍ او نومیالي شخصیتونه په زور له کندهاره جلاوطنۍ ته اړ ایستل، ځینې اصفهان او ځینې نور یې ختیځو او سویلي سیمو ته وشړل. په دې ډله کې سیدال خان ناصر له خپلې کورنۍ او نورو خپلو خپلوانو سره د کابل شکر درې ته راغی، دغلته استوګن شو او همدلته مړشو چې اوس یې هم قبر د شکر درې د سیاه سنګ په هدیره کې معلوم دی او د ناصرو د قبیلې وګړي هم په دغه سیمه کې استوګن دي.
سیدال خان ناصر د پښتو ژبې پیا وړی شاعر هم و، محمد هوتک د هغه شعر په ((پټه خزانه)) کې خوندي کړی او تر موږ یې رارسولی دی.

په ((پټه خزانه کې)) د سیدال خان ناصر یوه بدله راغلې ده. د هغې بدلې پیل داسې دی:

یار ما له هسې ګران شو    راتېر تر ټول جهان سو
نور نه وینم په سترګو    جهان ټول راته جانان سو

د متن لنډیز:
سیدال خان ناصر د هوتکو د دورې له نومیالیو پوځي او فرهنګي شخصیتونو څخه و. نوموړی د میرویس نیکه د ملي مبارزې پیاوړی ملګری و. د هغه د مشرۍ په وخت کې د افغاني پوځونو سرلښکر و. وروسته چې شاه محمود هوتک واکمن شو او بیا یې پر اصفهان برید کاوه، سیدال خان ناصر ورسره ملګری و او د سرلښکر په توګه یې په دغه ستره سوبه کې پوره ونډه درلوده. وروسته د کندهار د کلابندۍ په وخت کې د نادر افشار د پوځونو په لاس ړوندکړای شو. نوموړی پر سرلښکرۍ سربېره د پښتو ژبې شاعر هم و. د شعر بېلګه یې پټې خزانې موږ ته رارسولې ده.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن یو ځل په چوپه خوله ولولي، بیا دې څو تنه زده کوونکي په وار سره د متن یو یو پراګراف په لوړ آواز ولولي او نور زده کوونکي دې ورته متوجه وي.

۲ ـ زده کوونکي دې له متن څخه د سیدال خان ناصر په اړه څو کرښې په خپلو کتابچوکې ولیکي او بیا دې په ټولګي کې ولولي.

۳ـ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي:

ـ د سیدال خان ناصر له لوست څخه مو څه مفهوم ترلاسه کړ؟

ـ سیدال خان ناصر ولې له میرویس خان نیکه سره په مبارزه کې ګډون کړی و؟

ـ سیدال خان ناصر له مبارزې پرته نورې څه کارنامې درلودې؟

ـ د سیدال خان ناصر قبر چیرې دی؟

ـ سیدال خان ناصر له کندهاره ولې جلا وطنۍ ته اړ ایستل شو؟

٤ـ زده کوونکي دې په متن کې د جمع لس کلمې پیدا او په خپلو کتابچو کې دې په مفردو کلمو واړوي او بیا دې ترې جملې جوړې کړي.

٥ـ زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې فعلونه پیدا کړي او په بېلا بېلو زمانو کې دې په خپله خوښه وکاروي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کور کې متن په غور ولولي او بیا دې د سیدال خان ناصر په اړه یوه لیکنه وکړي. او په بله ورځ دې په درسي ساعت کې واوروي.



درویشتم لوست

# د ولسي ادب ډولونه

- تاسې په خپل کور کلي او ولس کې داسې څوک پېژنئ چې لیک لوست نشي کولی خو شعرونه وایي؟
- داسې څوک درمعلوم دی چې په خبرو کې متلونه یا لنډکۍ کیسې او مثالونه وایي؟

هر ولس دوه ډوله ادبیات لري: یو یې لیکلي ادبیات دي چې په ټولنه کې د لوستو او باسواده وګړو له خوا رامنځته شوي او خوندي شوي دي او بل هغه ادبیات دي چې د نالوستو یا بې سواده او عامو وګړو له خوا ویل شوي او په شفاهي بڼه له یو نسل څخه بل ته انتقال شوي دي. دغو ادبیاتو ته ولسي ادبیات ویل کېږي چې په دې لوست کې یې درپېژنو:

ولسي ادبیاتو ته شفاهي او فولکلوري ادب هم وايي. ولسي ادبيات د ولس، ټولنې او ملت په ادبي تاريخ کې ډېره مهمه او ستره برخه جوړوي، د ولسي ادب له يادونې او پاملرنې څخه پرته د يوه ولس او خلکو د ادبياتو تاريخ نيمګړی ګڼل کېږي.

پښتانه د افغاني ټولنې د يوې سترې برخې په توګه د ولسي ادبياتو ډېره بډايه او ارزښتمنه پانګه لري.

پښتنو د پېړيو په اوږدو کې خپلې هيلې، ارمانونه، غوښتنې، خوښۍ، غمونه، رنځونه، مينه او لنډه دا چې د ټولنيز ژوند ټول کره وره په ولسي ادبياتو کې منعکس کړي دي او هغه يې په شفاهي توګه له يوه نسل څخه بل نسل ته لېږدولي دي.

عام ولسي وګړي که ليک لوست نشي کولای او د سواد له نعمت څخه بې برخې دي، خو پياوړی هنري ادبي ذوق لري. هغوی خپل دغه ذوق او احساس د دغو ولسي ادبياتو په بېلا بېلو قالبونو کې ځايوي او په ښکلي ډول يې بيانوي.

پښتو ولسي ادبيات په لومړي سر کې په دوو سترو برخو بېلېږي:

۱ـ منظوم ولسي ادبيات ۲ـ منثور ولسي ادبيات

د پښتو ولسي ادب منظومه برخه د پښتنو د هنري استعداد او ذوق ډېره ښکلې ارزښتناکه معنوي شتمني او د ټولنيز ژوند رښتينې هنداره ده.

منظوم ولسي ادب په دوو څانګو وېشل کېږي: يوې ته يې عام ولسي شعرونه يا سندرې او بلې ته يې خاصې ولسي سندرې يا شعرونه وايي.

عام ولسي شعرونه: هغه دي چې وينا وال او شاعر يې نه دی معلوم او د ټول ولس ګډ مال ګڼل کېږي. په دې شعرونو کې دا لاندې ډولونه شامل دي:

۱ـ د مېندو سندرې ۲ـ د ماشومانو سندرې ۳ـ منظوم اړونه (چيستانونه) ٤ـ د اتڼ نارې
۵ـ سروکي ٦ـ لنډۍ ۷ـ د نکلونو نارې ۸ـ کاکړۍ غاړې ۹ـ تاريخي نارې ۱۰ـ منظوم فالونه
۱۱ـ منظوم متلونه ۱۲ـ د ښځو سندرې.

خاصې ولسي سندرې يا شعرونه:

هغه سندرې او شعرونه دي چې ويناوال او شاعران يې معلوم دي او د ولس پېژندل شوي وګړي دي. دا لاندې ډولونه لري:

(۱) رباعي (مقام) (۲) غزل (بدله) (۳) چاربېته (٤) داستان.

**دويم منثور ولسي ادبيات**: ولسي نثرونه هغه اوږدې او لنډې ادبي ويناوې دي چې د ولس په زړه کې رامنځ ته کېږي. دغه ويناوې د ټول ولس له خوا کره او پخې شوې او بيا خوله په خوله، سينه په سينه د پېړيو په اوږدو کې له يوه پښت يا نسل څخه بل ته لېږدېدلي دي.

د پښتو منثور ولسي ادبيات ډولونه لري چې ډېر مشهور يې دا دي:

(۱) ولسي نکلونه (۲) ورې کيسې (۳) منثور متلونه (٤) اصطلاحات او محاورې (۵) ټوکې ټکالې او نور.

موږ په پښتو ژبه کې ډېر ولسي ادبيات درلودل چې په هغو کې د ولس ټول کره وره ځرګندېدل، خو له بده مرغه چې زيات يې د وختونو په اوږدو کې د ښلا ښلو لاملونو له امله دغو ولسي ادبياتو ته پاملرنه نه ده شوې او له منځه تللي دي.

موږ ته لازمه ده چې په هره سيمه کې ولسي ادبياتو ته په درنه سترګه وګورو، هغه راټول کړو او راتلونکي نسل ته يې پرېږدو.

د متن لنډيز:

ولسي ادبيات د هر ولس د ادبياتو د تاريخ ځانګړې او ډېره مهمه برخه جوړوي. دا ادبيات لومړی په نظم او نثر وېشل کېږي او بيا دا هره برخه يې ځانته ښلا ښل ډولونه لري. د دې لپاره چې دغه ادبيات زياتره په ولس کې خواره او ناليکلي بڼه لري، بايد چې راټول او له ورکېدو او هېرېدو څخه وژغورل شي.

## فعاليتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په چوپه خوله ولولي او پر تختې ليکلي لغتونه او د هغو معناوې دې په خپلو کتابچو کې وليکي: لغتونه دې په مناسبو جملو کې وکاروي.

۲ـ زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راوبلل شي چې د متن مفهوم په خپلو الفاظو کې ووايي.

۳ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. يوه ډله دې دمنظومو ولسي ادبياتو ډولونه لېست کړي او بله ډله دې د نثري ولسي ادب ډولونه لېست کړي.

٤ــ زده کوونکي دې د لاندې جملو تش ځایونه د لوست له متن څخه په پنسل سره په مناسبو کلمو ډک کړي:

ــ ولسي شاعران زیاتره.............................. وګړي دي.

ــ ولسي ادبیاتو ته........................ یا......................... ادبیات هم وايي.

ــ هغه ولسي شعرونه چې شاعر یې معلوم وي.......................... ورته وايي.

ــ هغه ولسي شعرونه چې شاعر یې معلوم نه وي.......................... یې بولي.

٥ــ زده کوونکي دې متن په غور ولولي، صفتونه دې په نښه او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي.

ــ یو زده کوونکی دې پر تختې د منظومو او منثورو ولسي ادبیاتو نومونه ولیکي، بیا دې څو تنه په وار سره د هغوی په هکله خبرې وکړي.

٦ــ څو تنه دې په دې هکله خبرې وکړي چې که چېرې ولسي ادبیات راټول نه شي څه زیانونه به رامنځ ته شي.

ــ یو زده کوونکی دې پر تختې د ادب کلمه ولیکي، نور زده کوونکي دې په خپله خوښه په وار سره د ادب د کلمې په ارتباط نورې کلمې ووايي او لومړی زده کوونکی دې پر تختې ولیکي.




زده کوونکي دې په خپله خوښه یوه فولکلوري کیسه، یا څو لنډۍ او یا هم متلونه ولیکي او په راتلونکي درسي ساعت کې دې هغه د ټولګیوالو په وړاندې ولولي.



څلورویشتم لوست

# دا کلی مه ورانوئ (آزاد شعر)



- تر اوسه مو د آزاد شعر نوم اورېدلی دی، کوم ډول شعر ته وايي؟
- د خو داسې پښتو معاصرو (اوسنیو) شاعرانو نومونه واخلئ چې اوس ژوندي نه دي؟

شعرونه په عمومي توګه په دوه ډوله دي: قافیه لرونکي شعرو نه او آزاد شعرونه. قافیه لرونکي شعرونه هغه دی چې شاعر د شعر په جوړښت کې وزن او قافیه دواړه رعایت کړې وي. او آزاد شعر قافیه نه لري، خو د ځانګړي وزن او آهنګ لرونکی وي. دلته تر پورتني سرلیک لاندې یو آزاد شعر لولو چې شاعر پکې جګړه، د کور کلي اوهېواد وېجاړول غندلي، د بیارغونې، آبادۍ او سولې ستاینه یې کړې او خلک یې ورته هڅولي دي.

دغه شعرد افغانستان د نومیالي، ځوانیمرګ شاعر اروابناد اسحاق ننګیال دی چې د آزاد شعر یوه غوره بېلګه ده.

دا کلی مه ورانوئ!
دا کلی مه ورانوئ!
دا کلی مه ورانوئ!
گورئ چې هلته د شنو ولو د شنو سیورو لاندې
گورئ د شنې ویالې تر څنــګه د جلګو د پــــاسه
یو کوچنی پروت دی
یو کــوچنی ویده دی
اوتر ورې لوپټې لاندې
په خوب ورو ستر ګو
د ناز په غېږه کې کوچني شینکي خوبونه ویني
دا کلی مه ورانوئ!
دا کلی مه ورانوئ!
گورئ چې هلته لکه زر کې زمور د کلي نجونې
گورئ چې هلته د بامو پرسر نورسې پیغلې
کتار کتار د لمر تر وړانګو خپل پیکي جوړوي
او په مینو ژبو
د پیغلوتوب غوږ کې د ځوان هوس سندرې بولي
دا کلی مه ورانوئ!
دا کلی مه ورانوئ!
گورئ چې هلته له هغو سپیرو کوډلو څنې
گورئ چې هلته د دې تورې تروږمی له غېږې
ساړه زګیروي جګیږي
سوزمن آواز راځي
او امیدوارې میندې
د انتظار د بڼ د سرو ګلونو لارې څاري.
دا کلی مه ورانوئ!
دا کلی مه ورانوئ!

اروابناد اسحاق ننګیال

## د متن لنډيز:

شاعر په دې آزاد شعر کې د يو کلي انځور وړاندې کوي چې يو وخت آباد، ودان او سمسورو او ښاد جګړو په بهير کې ړنګ شوی او يا اوس هم په خپل منځي جګړو او شخړو کې د لاړنګيدو په حال کې دی، نو شاعر، وګړي د ويجاړولو پر ځای سولې او ورورۍ ته هڅوي او د هغه د سمسورې او آبادې بڼې يو ښکلی انځور وړاندې کوي.

اسحاق ننګيال د افغانستان په نوې شاعرۍ کې د پاملرنې وړ ځای لري. هغه په ۱۳۳۵ هـ.ش کال کې د لغمان د الينګار په بسرام کلي کې زيږيدلی او په ۱۳۷۷ هـ.ش کال کې وفات شوی دی. مزار يې د الينګار د بسرام په کلي کې دی. د دغه ځو انيمرګ شاعر د څو چاپ شوو کتابونو نومونه دا دي:

ډالی، څاڅکي څاڅکي، هغه ښې هغه کلونه، سيند و نه هم مري (شعري ټولګې) سيوری ((ناول)) او داسې نور.

## فعاليتونه

۱- زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته ټول متن په چوپه خوله و لولي. ستونزمن لغتونه او کلمې دې په نښه کړي.

۲- ښوونکی دې په وار سره يويو زده کوونکی تختې ته راوغواړي چې خپلې په نښه کړې کلمې او لغتونه پر تختې وليکي.

۳- ښوونکی دې د ستونزمنو لغتونو معنا پر تختې و ليکي او زده کوونکو ته دې لارښوونه وکړي چې هغه په خپلو کتابچو کې وليکي.

٤- زده کوونکي دې په وار سره تختې ته لاړ شي او يويو لغت دې په مناسبه جمله کې وکاروي. نور زده کوونکي دې هغه په خپلو کتابچو کې وليکي.
٥- څو زده کوونکي دې په نوبت سره د شعر يوه يوه برخه د ټولګي په وړاندې په لوړ مناسب غږ ولولي.

٦- زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته را وبلل شي چې د شعر عمومي معنا او مفهوم په خپلو الفاظو کې تشريح کړي.
٧- زده کوونکي دې په دوو ډلو وويشل شي. يوې ډلې ته دې دنده ورکړل شي چې په شعر کې راغلي صفتونه او بله ډله قيدونه په نښه کړي. د هرې ډلې استازی دې هغه د تختې پر مخ وليکي. بيا دې په نوبت سره د يوې ډلې ليکلي صفتونه په مناسبو جملو کې وکاروي او همدارنګه د بلې ډلې زده کوونکي دې د هغې بلې ډلې ليکلي قيدونه په جملو کې وکاروي.
٨- ښوونکي دې د دې لاندې پوښتنو په کولو سره د لوست ارزونه وکړي:
١- له دې لوست څخه مو څه مفهوم واخيست؟
٢- جګړه څه زيانونه لري؟
٣- د هېواد د بيا رغونې لپاره بايد څه وکړو؟
٤- سوله څه ګټې او ښيګڼې لري؟
٥- په هېوادکې د سولې او امن د راوستلو لپاره څه ته اړتيا ده؟
٦- د اسحاق ننګيال د څو چاپ شوو کتابونو نومونه وا خلئ؟
- آزادي ولې د انسان بشري حق دی؟
- که چېرې يوڅوک په ټولنه کې د نورو انسانانو د انساني حقوقو ملاتړ وکړي په ټولنه کې به څه رامنځ ته شي.




زده کوونکي دې د خپلې سيمې د کوم اوسني شاعر په اړه معلومات وليکي، په راتلونکي پښتو ساعت کې دې نورو ټولګيوالو ته ولولي.



پنځه ویشتم لوست

# ماینونه _ غمونه



_ تا سو داسې شیان پېژنئ چې په چاودلو سره یې مرگ او ژوبله رامنځ ته کېږي؟

_ له داسې چاودېدونکو شیانو څخه څنگه ځانونه وساتو او څنگه یې له منځه یو سو؟

زموږ په هېواد کې د جگړو او بدمرغیو په بهیر کې د وژنو او ژوبلو لپاره له ډول ډول وسلو څخه کار اخیستل شوی دی او زیات مرگونه او ژوبلې یې رامنځ ته کړې دي.

له دغو وسلو او وسیلو څخه ماینونه او ناچاودي توکي دي چې په ځانگړې توگه د یادولو وړ دي چې په دې لوست کې یې تاسو ته درپېژنو.

ماینونه د هغو خطرناکو او وژونکو توکو له ډلو څخه دي چې په چاودلو سره یې مرګ ژوبله رامنځته کېږي. په جګړو کې ښکېلې خواوې مقابل لوري ته د ځاني او مالي زیان رسونې په موخه له ماینونو څخه د یوې اغېزناکې او کاري وسیلې په توګه کار اخلي. په عمومي ډول ماینونه په دوه ډوله دي:

۱ـ د پرسونل ضد ماینونه ۲ـ د وسایطو ضد ماینونه.

## ۱ـ د پرسونل ضد ماینونه:

هغه ځانګړي چاودېدونکي توکي دي چې له اوسپنې، پلاستیک او یا له لرګي څخه په بېلا بېلو بڼو لکه: د لوبو شیان، قلمونه، راډیوګانې او نور جوړ دي او په منځ کې یې ناچاودي مواد شته چې هغه د بدن د غړي د فشار په وسیله چوي او مرګ ژوبله رامنځته کوي.



## ۲ـ د وسایطو ضد ماینونه:

دا ماینونه په بېلا بېلو بڼو جوړېږي چې د وسایطو لکه: موټرو، لاریو، ټانکونو او نورو د فشار په واسطه چوي او ځاني او مالي زیانونه رامنځ ته کوي.

د ماینونو پېژندل ډېر ستونزمن کار دی، ځکه چې زیاتره په ځمکه کې ښخ او ځینې بیا د عادي استعمالوونکو شیانو په څېر دي، نو ځکه په دې اړه ډېر غور اوپاملرنه په کار ده. موږ ته په کار ده چې له دغه خطرناک دښمن څخه ځانونه وساتو، د هغو احتمالي سیمې وپېژنو او د ناچادو توکو په اړه معلومات هم ترلاسه کړو. ماینونه په عام ډول د ځانګړو سیمو د ساتنې لپاره هم کارول کېږي، لکه پوځي پوستې او مرکزونه.

د ناچاودو توکو پېژندنه بیا دومره ډېره ستونزمنه نه ده، ځکه زیاتره د ځمکې پر سر پراته دي. دا هغه مهمات دي چې د جګړو په مهال چاودلي نه دي. په دې کې توغندي، د بمونو ټوټې، لاسي بمونه، د ټانک، ټوپک او ماشیندارو ګولۍ او نور شامل دي.

ماینونه او ناچاودي توکي زیاتره په لاندې ځایونو کې پیداکېږي:

ـ په هغو لارو او سرکونو کې چې ډېر تګ راتګ پرې نه کېږي،

- د موټر د راګرځېدو په سيمو کې،
- د پلونو او پلچکونو دننه او شاوخوا ځايونو کې،
- د رنګو او وېجاړو شويو ودانيو دننه او شاو خوا ځايونو کې،
- رنګو شوو ودانيو ته د ورتلو او ننوتو په لارو او د خونو په درشلونو او کونجونو کې،
- د ځاګانو او د اوبو د نورو سرچينو دننه او شاو خوا برخو کې،
- د پوځي پوستو او ويجاړو شوو وسايطو په شاوخوا کې،
- په هغو سمڅو او کندو کې چې د جګړې پر مهال د پټېدو د ځای په توګه کارول شوي دي.

موږ ته په کار ده چې په پورتنيو سيمو او نورو ځايونو کې ناپېژندل شوو شيانو ته هېڅکله لاس ور نه وړو، سيمونه او مزې يې کش نه کړو. پر شاوخوا باندې يې ډبرې وا نه چوو. که چېرې مو په داسې سيمو کې د ماينونو او ناچاودو توکو نښې نښاني وليدې، بايد د ماينونو د پاکولو د مؤسسې چارواکو ته خبر ورکړو.

ماين پاکان د ماينونو سيمې ته راځي، په هغو سيمو کې تيږې په سره رنګ رنګوي او که تيږې نه وي، داسې نورې نښې نښانې جوړوي چې سور رنګ لري. د سره رنګ نښانې دا معنا لري چې هلته د ماينونو خطر دی او تګ راتګ پکې بند دی، نو بايد داسې سيمو ته نژدې ورنه شو. کله چې داسې سيمې له ماينونو څخه پاکې شوې، بيا هغه سرې نښې په سپين رنګ په نښه کوي. دا کار دا معنا لري چې اوس په دې ځای کې ماينونه نشته. ماين د ژوندانه دښمن دی. بايد له دغه دښمن څخه ځان وساتو او د له منځه وړلو لپاره يې فني کسانو ته خبر ورکړو.

**د متن لنډيز:**

زموږ د هېواد په ځينوسيمو کې د دريو لسيزو جګړو په بهير کې د ښکېلو اړخونو له خوا ماينونه ښخ شوي دي. دغه راز ناچاودي توکي هم شته چې د ماين په څېر زيان رسوونکي دي. بايد ځانونه ورڅخه وساتو او که چېرې يې نښې نښانې ووينو،
بايد فني کسانو ته خبر ورکړو. هغو کسانو ته چې په ماينونو کې يې د وجود غړي له لاسه ورکړي وي، په درانه نظر وګورو او له هغوی سره د خپل توان په اندازه مرسته وکړو.



## فعالیتونه

۱ـ د ښوونکي له لوستلو څخه وروسته دې زده کوونکي متن په چوپتیا سره ولولي، بیا دې څو کسه په وار سره متن په لوړاوازولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

۲ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي: د یوې ډلې څو تنه دې د هغو سیمو نومونه واخلي چې ښایي ناچاودي توکي پکې وي او د بلې ډلې څو تنه دې د ماینونو له سیمې څخه د ځان ساتلو په هکله خبرې وکړي.

۳ـ څو تنه دې د دې لوست د متن په مفهوم خبرې وکړي.

ـ څو تنه دې د هغو کسانو په اړه خبرې وکړي چې په داسې چاودنو کې یې خپل ځینې غړي له لاسه ورکړي وي.

٤ـ څو تنه زده کوونکي دې له معلولو کسانو سره د مرستې په اړه خبرې وکړي.

۵ـ زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د ماینونو د خطرونو په اړه څو کرښې ولیکي او بیا دې خپلو ټولګیوالو ته ووایي.

٦ـ زده کوونکي دې لاندېنیو دوو جملو ته په خپله خوښه پراختیا ورکړي او بیا دې خپلو ټولګیوالو ته ووایي:

۱ـ ماینونه د ژوندانه ستر دښمن بلل کېږي...

۲ـ باید هغه سیمې چې د ماینونو او ناچاودو توکو نښې نښانې پکې وي..............

۷ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي او هره ډله دې په وار سره له بلې ډلې نه دا لاندې پوښتنې وکړي:

ـ ماینونه څوک دخه لپاره ښخوي؟

ـ ناوچاودې توکي ولې همداسې پاتې دي؟

ـ د ماینونو او ناچاودو توکو په وړاندې زموږ دنده څه ده؟

ـ له معلولو کسانوسره څه ډول مرسته وکړو؟

ـ که تاسې په کوم ځای کې له ماین سره مخامخ کېږئ، نو باید څه وکړئ؟



## کورنۍ دنده

په خپلو کورنیواویا ګاونډیانو کې د هغو کسانو په هکله معلومات ترلاسه کړئ چې معلول شوي دي او په بل درسي ساعت کې یې خپلو ټولګیوالو ته کیسه وکړئ او که چېرې مو له کوم معلول شخص سره مرسته کړې وي، خپلو ټولګیوالو ته یې ووایئ.





# ترافیکي پېښې (خبرې اترې)

- تاسې پوهېږئ چې ترافیک څه ته وايي؟
- د ترافیکي پېښو مخنیوی څنګه کولی شو؟
- د ترافیک د دندې په هکله څه ویلای شئ؟

د هرې ورځې په تېرېدو سره د خلکو او موټرو ګڼه ګوڼه زیاتېږي. لوی او واړه سرکونه جوړېږي او ډول، ډول موټرې د خلکو د اړتیاوو د پوره کولو لپاره رامنځ ته کېږي.

کله، کله د موټرونو په ټکر او اوښتنې کې زیات ځاني او مالي زیانونه رامنځ ته کېږي.

د ترافیکي پېښو د مخنیوي او په ترافیکي نښو او اشارو باندې د پوهېدو لپاره مو د خبرو اترو په بڼه یو لوست تیار کړی دی چې د دویمې ژبې په زده کړه کې د زده کوونکو لپاره ډېر ګټور بلل کېږي. په خبرو اترو سره دویمه ژبه ژر زده کېږي او ویونکي په خبرو کې له ستونزو سره نه مخامخ کېږي.

اجمل: السلام علیکم فرید جانه! په خیر راغلې. خیریت خو به و، نن ناوخته راغلې؟

فرید: وروره له کوره وختي راروان شوی وم، خو په لاره کې د ترافیکو ګڼه ګوڼه وه، ناوخته شو.یو ځل مې نابینا له لاسه ونیوه او له سرک نه مې تېر کړ بیا مې په بل ځای کې څو ماشومان چې ښوونځي ته تلل، له سرک نه تېر کړل.

اجمل: ای وروره! تا د ترافیکو خبره وکړه، دا ترافیک څه معنا لري؟

فرید: په ښارونو او اطرافونو کې د سرکونو پر مخ د ټایر لرونکو وسایطو تګ راتګ ته ترافیک وایي او هغه څوک چې دغه تګ راتګ کنټرولوي او په دې هکله قانون تطبیقوي. د ترافیکي پولیسو په نامه یادېږي.

اجمل: نو چې داسې ده موږ په خپل هېواد کې دوه ډوله ترافیک لرو: هوایي او ځمکني ترافیک، همداسې نه ده؟

فرید: بلکل همداسې ده. الوتکې په هوایي کرښو باندې تګ راتګ کوي او موټر، ګاډی، بایسیکلونه، موټر سایکلونه یعنې هر څه چې ټایر لري په سرکونو باندې تګ راتګ کوي.

اجمل: فریده وروره! څومره چې د واټونو سور کم وي او ترافیک زیات وي، ترافیکي پېښې هم زیاتېږي. همداسې نه ده؟

فرید: د ترافیکي پېښو د کنټرول لپاره چې ځاني او مالي زیانونه پکې رامنځ ته کېږي، په هر هېواد کې ترافیکي قوانین موجود دي او دا قوانین تر زیاتې اندازې پورې په ټولو هېوادونو کې یو شان دي.که چېرې مراعات شي، پېښې به ډېرې کمې شي.

فرید: اجمله زه له تا څخه یوه پوښتنه کوم چې څوک د موټرو چلولو اجازه لري؟

اجمل: زموږ د هېواد قانون دا دی که نرینه وي که ښځینه وي چې د ۱۸ کلنۍ عمر یې پوره کړی وي، د موټر د چلولو لپاره امتحان ورکوي.نظري او عملي آزموینه ترې اخیستل

کېږي او د بریالیتوب په صورت کې ورته لایسنس ورکوي چې د چلولو په وخت کې باید تل ورسره وي.

فرید: خو په آزموینه کې باید ترافیکي نښې او نښانې هم وپېژني.

هغه څوک چې په چلولو کې ترافیکي نښې مراعات نه کړي، د ترافیکي پېښو د رامنځ ته کېدو سبب کېږي.

اجمل: ما ته یوه بله پوښتنه پیدا شوې ده او هغه دا ده چې ترافیکي پېښې په څو ډوله دي؟

فرید: په یوه کتاب کې مې ولوستل چې ترافیکي پېښې په درې ډوله دي:

مړینه، ټپي کېدل او مالي زیان یعنې په ځینو کې به مرگ وي، په ځینو کې به سپرلی ټپي شي او په ځینو کې مالي زیانونه رامنځته کېږي.

اجمل: فرید جانه تاسو د ترافیکي اشارو خبره وکړه .دا خو ډېره ضروري ده چې زده یې کړو. که په دې باره کې څه رڼا واچوي، خوشحاله به شم.

فرید: ترافیکي نښې ډېرې دي، خو هغه چې ډېرې ضروري دي، زه یې درته وایم. یو ډول نښې یې د برېښنا څراغونه دي چې عموماً په درو لارو او څلور لارو کې نصب شوي وي .په دې ډول څراغونو کې سره، ژېړ او شنه څراغونه وي ان په ځینو لارو کې د څراغونو تر څنگ کمرې هم شته چې د ترافیک پولیسو له خوا له ټاکل شوي ځای نه کنترول کېږي او کمرې ته مخامخ ټوله جاده پکې ښکاري.

اجمل: نو درې ډولونه څراغونه د څه لپاره وي؟

فرید: که چېرې مخامخ سور څراغ ولگېده، پر سرک تېرېدل خطر لري، نو باید موټر چلوونکی ودرېږي. د بل لوري لپاره څراغ شین کېږي یعنې د تېرېدو لپاره اجازه ورکول کېږي، خو کله چې د چلوونکي په وړاندې اشاره ژېړه شوه، د تگ لپاره تیاری نیسي، په شنه څراغ سره حرکت کېږي. دغه راز پلي خلک هم باید وگوري، که د موټرو لپاره اشاره

شنه شوه، دوی باید پر سرک تېر نه شي.  زموږ په هېواد کې موټرونه په ښي لوري ځي، کله چې موږ له سرک څخه تېرېږو، باید ښي او کيڼ لوري ته وګورو، که موټر نه وي بیا تېر شو.

فرید: په ځینو واټونو کې ترافیک پولیس هم وي، هغوی د څه لپاره ودرېږي؟

اجمل: هغوی هم په هغو ځایونو کې چې ترافیکي نښې نه وي، د موټرو تګ راتګ کنټرولوي.باید د هغوی په اشاره حرکت وشي او دغه ترافیکي پولیس د پېښو ځای ته هم ورځي.

دغه راز که چېرې ترافیکي پېښه وشوه باید د پېښې له ځای څخه چلوونکی ونه تښتي، ځکه چې تښته جرم زیاتوي.

فرید: موږ او ټولو زده کوونکو ته لازمه ده چې ترافیکي قوانین مراعات کړو او په ترافیکي نښو او اشارو ځانونه وپوهوو.

اجمل: هغه څوک چې نقلیه وسایط چلوي باید ترافیکي قوانین زده او هغه عملي کړي او ګټه ورڅخه واخلي.

فرید: هغوی باید یو بل کار هم وکړي او هغه دا چې ډېر تېز لاړ نه شي، ځکه چې تېز والی په حقیقت کې د مرګ هر کلی کوي.

اجمل: یوه ورځ مې له یوه ډرېور څخه چې څلوېښت کاله یې همدغه دنده سرته رسولې وه، غوښتنه وکړه ما ورته وویل:

استاده پوه ډرېور څوک دی؟

هغه راته په ځواب کې وویل:

پوه ډرېور هغه څوک دی چې احتیاط کوي.

د متن لنډيز:

پر واټونو تګ راتګ ته ترافيك ويل کېږي. څوك چې د ترافيکي قوانينو د تطبيق او کنترول دنده سر ته رسوي، د ترافيکي پوليسو په نامه يادېږي.

ترافيك ځانګړي قوانين او نښې نښانې لري. هغه څوك چې ترافيکي نښې او قوانين نه مراعاتوي.له ترافيکي پېښو او مالي زيانونو سره به مخامخ شي. لازمه ده چې هم ترافيکي قوانين عملي کړو او هم په ترافيکي نښو نښانو پوه شو اوتل ورته پاملرنه وکړو.

## فعاليتونه

۱ــ څو زده کوونکي دې په وار سره د ترافيکي پېښو د رامنځته کېدو او مخنيوي په باره کې خپلو ټولګيوالو ته خبرې وکړي.

ــ زده کوونکي دې په خپلو کتابچوکې له ترافيکي پېښو څخه د ځان ساتنې په هکله څو جملې وليکي او بيا دې يې ټولګيوالو ته ووايي.

ــ څو زده کوونکي دې د خبرو اترو د اصلي مفهوم په هکله وغږېږي.

۲ــ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ورکړي.

ــ په هېواد کې کوم کسان د موټرو د چلولو آزموينه ورکولای شي؟

ــ د موټرو د چلولو لپاره د کومو قوانينو زده کړې ته اړتيا ده؟

۳ــ زده کوونکي دې په خپلو کتابچوکې لاندې جملې ته په خپله خوښه پراختيا ورکړي، بيا دې يې خپلو ټولګيوالو ته ووايي.

ــ ترافيکي پېښې ځکه رامنځته کېږي چې....

ــ څو زده کوونکي دې په لنډ ډول د څو ترافيکي اشارو او مقرراتو په هکله خبرې وکړي.

ــ که چېرې پر يوه څلور لارې يا سرك باندې ترافيك پوليس نه وي، نو کوم مقررات بايد په پام کې ونيسو؟

٤ــ زده کوونکي دې لاندې کلمې په خپلو کتابچوکې په جملو کې استعمال کړي او په ټولګي

کې دې يې ولولي.

ترافيک، ترافيکي نښې، پيښنه، قوانين، پارک، سرک.

ـ که چېرې په يوه څلور لارې کې څراغ سور شي، څه بايد وکړو؟ او که څراغ شين شي، څه بايد وکړو؟ څو زده کوونکي دې پرې خبرې وکړي.

۵ـ څو زده کوونکي دې په دې هکله خبرې وکړي چې که چېرې چلوونکی په نښې پوه نشي او په کيڼ لاس حرکت وکړي څه زياتونه به رامنځته کړي.

ـ که چېرې د چلوونکي موټر ټکر شي د پيښې له ځای څخه تېښته څه زيان لري؟

۶ـ څو زده کوونکي دې د لاندې کلمو متضادې کلمې پيدا کړي او هغه دې په جملو کې وکاروي، بيا دې يې ټولګيوالو ته ووايي.

پوهه، ډېر، زيات، مرګ، زيان

ـ څو زده کوونکي دې لاندې جمع کلمې په مفردو او مفردې کلمې په جمع واړوي او په جملو کې دې وکاروي.

ښارونه، پيښنه، هېوادونه، قوانين، مرګ، څراغونه، نښه، پارک، جرم، ښېلګه.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره خپلو ټولګيوالو ته د هغه ډرېور کيسه وکړي چې ترافيکي قوانين يې مراعات کړي نه وي او ورته زيان رسېدلی وي.

ـ يو زده کوونکی دې پر تختې باندې د ترافيکو د يوې اشارې نوم وليکي، بيا دې څو تنه زده کوونکي د نوموړې اشارې په هکله خبرې وکړي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د داسې يوې ترافيکي پيښې په باب اته کرښې وليکي چې په خپلو سترګو يې ليدلې وي. په راتلونکي درسي ساعت کې دې خپلو ټولګيوالو ته ولولي.



اووه ويشتم لوست

# پټه خزانه




ـ آيا تاسي پخوا د ((پټې خزانې)) نوم اورېدلی يا مو دا کتاب لوستلی دی؟

پښتو ژبه يوه لرغونې ژبه ده، ادب يې هم ډېره لرغونتيا لري. له بده مرغه چې د پښتو ژبې او ادب ډېر لرغوني ليکلي آثار، د زمانې توپانونو له ځان سره وړي دي. اوس يې ډېرې بېلګې په لاس کې نه لرو. د شعرونو خو پخوانۍ بېلګې چې اوس يې موږ په لاس کې لرو، هغه په يو ډېر ارزښتناك ادبي کتاب کې چې ((پټه خزانه)) نومېږي، خوندي شوي او تر موږ رارسېدلي دي. په دې لوست کې تاسې ته دغه ارزښتناك ادبي کتاب درپېژنو.

پټه خزانه د پښتو ادب یو لرغونی کتاب دی چې محمد هوتک په دولسمه هجري پېړۍ (۱۱٤۱_۱۱٤۲ هجري قمري کال) په کندهار کې لیکلی دی.
لیکوال دغه کتاب د خپل وخت د فرهنګپالونکي پاچا شاه حسین هوتک په حکم او غوښتنه تألیف او ترتیب کړی دی.
د پټې خزانې د کتاب قلمي نسخه په ۱۳۲۲ لمریز کال تر لاسه شوه او د هغې له مخې پښتو ټولنې په ۱۳۲۳ لمریز کال کې د لومړي ځل لپاره چاپ کړه.
په دې ارزښتناک کتاب کې محمد هوتک دیوشمیر شاعرانو او لیکوالو د ژوند پېښې او د شعر نمونې خوندي کړې دي چې په هغو کې د امیر کروړ د ژوند حالات او یو شعر هم شته چې په ترلاسه کېدو یې د پښتو ادب تاریخي لرغونتیا د دویمې هجري پېړۍ لومړۍ نیمایي ته رسېږي.
د پټې خزانې لیکوال خپل تألیف کړی کتاب په دریو برخو ویشلی او هرې برخې ته یې ((خزانه)) نوم ورکړی دی:
په لومړۍ خزانه کې د پښتو یو شمیرهغه شاعران معرفي شوي چې د لیکوال له وخت څخه د مخه زمانو پورې اړه لري.
په هغو کې د بابا هوتک، شیخ ملکیار، اسماعیل، خرشبون، شیخ متي، امیر کروړ، شیخ اسعد سوري، ښکارندوی، ابو محمد هاشم سروانی، شیخ تیمن، شیخ بستان بړېڅ، شیخ رضي لودي، نصر لودي، شیخ عیسیٰ مشوانی، سلطان بهلول لودي، خلیل خان نیازی، خوشحال خان، زرغون خان، دوست محمد کاکړ، عبدالرحمان بابا، شیخ محمد صالح او علي سرور لودي نومونه راځي.
په دویمه خزانه کې لیکوال د خپلې زمانې (یوشمیر لیکوال او شاعران راپېژني چې د ځینو نومونه یې دا دي:
ملاباز توخي، شاه حسین هوتک، ملا زعفران، محمد یونس خان، عبدالقادر خان خټک، ملامحمد صدیق، ملا پیرمحمد میاجي، الله یار افریدی، بابوجان بابی، ریدي خان مومند، ملا محمد عادل بړېڅ او نور.
د کتاب په درېیمه خزانه کې مؤلف یو شمېر ښځینه شاعرانې راپېژندلي دي چې په هغو کې: نازو

توخي، حلیمه حافظه، نیکبخته، بي بي زینب، زرغونه او رابعه راځي.

د کتاب په پای (خاتمه) کې محمد هوتک د خپل پلار داؤد خان هوتک او خپله پېژندګلوي هم راوړې ده.

د پټې خزانې په ترلاسه کېدو، د پښتو لیکلی منظوم ادب د دوېمې هجري پېړۍ نیمایي ته رسېدلی دی. موږ باید دغه ارزښتناک ادبي کتاب ترلاسه او مطالعه کړو چې خپل پخواني شاعران وپېژنو او د هغو له شعرونو سره اشنا شو.

د پټې خزانې په کتاب کې له راغلي شعر څخه هغه پوخوالی او قوت ځرګندېږي چې موږ په ځغرده ویلای شو چې پښتو شاعري تر هغه د مخه موجوده وه او تر دې وخت پورې یې د پوخوالي او قوت پړاوونه وهلي وو او دومره یې پراخولی موندلی و چې د وخت امیر، امیر کروړ هم ورسره مینه لرې او په پښتو شعر وایي.

د متن لنډیز:

پټه خزانه د پښتو ژبې او ادبیاتو یو ډېر ارزښتناک کتاب دی چې محمد هوتک په ۱۱٤۱ ـ ۱۱٤۲هـ. ق. کال د فرهنګ پالونکي پاچا شاه حسین هوتک په حکم او غوښتنه لیکلی دی. دا کتاب د لومړي ځل لپاره په ۱۳۲۳ هـ. ش. کال په کابل کې د پښتو ټولنې له خوا چاپ شوی دی.

محمد هوتک په پټه خزانه کې یوشمیرشاعران او لیکوال راپېژني چې ځینې یې له ډېرو لرغونو زمانو دي او ځینې د لیکوال د خپلې زمانې او یا ترې لږ د مخه تېر شوي دي.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې هغه لغتونه او د هغو معناوې په خپلو کتابچو کې ولیکي چې ښوونکي پر تختې لیکلي دي.

ـ زده کوونکي دې لاندې لغتونه  په خپلو کتابچو کې معنا او په جملو کې وکاروي.

فرهنگ، فرهنګپال، لرغونی، تألیف.

۲ـ زده کوونکي دې متن په چوپه خوله ولولي، بیا دې یو یو د ټولګي مخې ته راوبلل شي چې د متن یو یو پراګراف د ټولګي پر وړاندې په لوړ غږ ولولي.

۳ـ زده کوونکي دې دغه پوښتنې  ځواب کړي :

پټه خزانه ولې د پښتو ادبیاتو ډېر ارزښتناک کتاب ګڼل کېږي؟

ـ پټه خزانه چا، د کوم واکمن (پاچا) په غوښتنه او سپارښتنه لیکلې ده؟

ـ پټه خزانه په کومو کومو برخو وېشل شوې ؟

٤ـ زده کوونکي دې په نوبت سره د ټولګي مخې ته راوبلل شي چې هر یو په پټه خزانه کې د راغلو شاعرانو دوه دوه نومونه واخلي.



## کورنۍ دنده

له لومړۍ نومرې څخه تر لسمې نومرې پورې زده کوونکي دې په کور کې له متن څخه د لومړۍ خزانې د شاعرانو نومونه، له یوولسمې نومرې څخه تر شلمې نومرې پورې دې د دوېمې خزانې د شاعرانو نومونه او پاتې زده کوونکي دې د درېمې خزانې نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکي.



اته ویشتم لوست

# نشه ستره بد مرغي



- آیا تا سو کوم داسې نشه يي ليدلی دی چې د ښه او نېکمرغه ژوند خښتن وي؟
- که چېرته مو په کلي او ګاونډ کې کوم نشه يي وي، له هغه سره د نورو خلکو چلند څه ډول دی؟

ټول نشه يي توکي حرام دي او هغه څوک چې ورباندې اخته وي، نه يوازې دا چې د هوسا ژوند خښتن نه وي، بلکې د کورنۍ او ټولنې د اوږو بارهم وي او خلک ورته په سپکه سترګه ګوري، نشه يي توکي ډول ډول وي چې يو له هغو څخه چرس دي، په دې لوست کې د چرسو د زيانونو په هکله ځينې څرګندونې لرو چې لولو يې.

ټول هغه شیان چې نشه راوړونکي دي، د اسلام سپيڅلي دين د هغو کارول حرام ګڼلي دي او دا حکم یې کړی دی چې باید خپل ځان ور څخه وساتو.
پر نشې باندې په روږدي کېدو او عادت سره د بدن د کار او فعالیت توان کمزوری کېږي. روږدي کسان نه د دنیا چارې په سمه توګه سمبالولی شي او نه د دین، نه خپل حقونه پېژندلی شي او نه هم د نورو. دغه وګړي په ټولنه کې د خپلوۍ او دوستۍ اړیکې هم په مناسبه توګه له نورو خلکو سره نشي پاللی.
نشه یې توکي ډېر ډولونه لري، له هغو څخه یو یې چرس دي، چرس زیان رسوونکی نشه یي توکی دی، یوه تور بخونه شین رنګه ماده ده چې د بنګو د بوټي له غوزې او نازکو پاڼو څخه لاس ته راځي.
له څېړنو څخه په ډاګه شوې ده چې انسانان له ډېرې پخوا زمانې څخه له دغه نشه راوړونکي توکي سره بلد وو او له هغه څخه یې د نشې او نورو هدفونو لپاره کار اخیستی دی. د دغې زیان رسوونکې مادې د پیدا کېدو اصلي ځایونه چین او اشور بلل شوي دي.
د چرسو د مادې ټول اجزا او توکي نشه راوړونکې ځانګړتیا لري.
له روغتیا یي څېړنو څخه څرګندېږي چې دغه ماده د انسان حافظه کمزورې کوي، د بدن موازنه خرابوي، پر زړه او دماغ هم ډېره ناوړه اغیزه کوي.
چرس ډېره روږدې کېدونکې ماده لري چې نورو نشه یي توکو، لکه: هیروئینو او کوکاینو ته لاره هواروي.
د چرسو استعمال چې په هر ډول وي، پر بدن ناوړې اغیز ې کوي، د زړه ټکان، د سترګو سوروالی، روحي ګډ وډي، د اعصابو کمزوري او د وجود د تعادل نشتوالی یې څرګندې نښې دي.
روږدی شخص دغه نشه په آسانۍ سره نشي پرېښودلای.
په دغه ناوړه نشه روږدي کسان په ټولنه کې له درنښت او احترام څخه بې برخې وي، خلك ورته په سپکه سترګه ګوري. په خپلوۍ، دوستۍ او ملګرتیا یې شرمیږي او په ولس کې داسې متل دی چې وایي:

(چرسي سړی، نه سړی) یا (چرسي زوی، نه زوی)

موږ باید له ټولو هغو نشه يي توکو څخه چې د اسلام سپيڅلي دين يې کارول ناروا او حرام بللي دي، په کلکه ډډه وکړو. د دغو توکو په زيانونو خلك و پوهوو چې له کښت، استعمالولو، او کار و بار څخه يې ځانونه وژغوري.

هغوی چې پرې روږدي دي، د نشې له عادت څخه د هغوی د خلاصون لپاره باید هر اړخيزې هلې ځلې وشي، د خير په دغه کار به مو د دنيا او اخرت نيکمرغي په برخه شي او موږ به د نشې له آفت او زيان څخه د ژغورلې ټولنې خاوندان شو.

په نشه يي توکو باندې روږدي کېدل ډېر لاملونه لري، د هرې کورنۍ دنده ده چې د خپلو اولادونو لپاره زياته پاملرنه وکړي چې اولادونه يې په نشه يي توکو روږدي نه شي.

که چېرې څوك وربانديې اخته وي د هغوی لپاره روغتونونه او درملونه موجود دي، د کورنيو او هېوادوالو دنده ده چې په مخدره توکو له روږدو کسانو سره کار وکړي او روغتيايي مرکزونو ته د هغوی لارښوونه وکړي.

له نېکمرغه چې اوس زموږ په هېواد کې د مخدره توکو د کښت او قاچاق د مخنيوي په برخه کې دولتي او ولسي هلې ځلې پيل شوې دي اوس هېوادوال د مخدره توکو پر ځای د هغوی بديل تخمونه کري او زياتې ګټې ترې لاسته راوړي. د دې هيله پيدا شوې ده چې نور به زموږ په هېواد کې د مخدره توکو د کرلو بهير پای ته ورسېږي او هېوادوال به مو په مخدره توکو نه روږدي کېږي.

**د متن لنډيز:**

چرس چې د بنګو له بوټي څخه لاس ته راځي، يوه تور بخونه شين رنګه ماده ده، يو ډېر زيان رسوونکی نشه يي توکی دی. په دې نشه روږدي کسان له ذهني لحاظه کمزوري، سست او تنبل وي، په ټولنه کې ورته خلك په سپکه سترګه ګوري، په دوستۍ، خپلوۍ او ملګرتيا يې هم شرمېږي. موږ بايد له ټولو نشو څخه په کلکه ځان وژغورو.



## فعالیتونه

۱ـ څو زده کوونکي دې په خپله د متن یو یو پراگراف ولولي او نور زده کوونکي دې د کلمو سم تلفظ او د جملو ترکیب ته په غور پام وکړي.

۲ـ د ښوونکي له خوا پر تختې باندې لیکل شوي او معنا شوي لغتونه دې په کتابچو کې ولیکي.

د لاندې جملې په تشو ځایونو کې مناسبې کلمې په پنسل ولیکئ:

موږ باید له ټولو هغو نشه یي توکو څخه چې د اسلام سپیڅلي دین یې کارول... کړي دي، په کلکه...................... وکړو.

۳ـ د متن له لوستلو څخه مو څه مفهوم واخیست ؟

د ټولگیوالو په مخکې خبرې پرې وکړئ.

• د نشه یا نو د ژوند په اړه څه فکر درسره پیدا شو؟

د ټولگیوالو په وړاندې پرې خبرې وکړئ.

٤ـ نشه یان ولې د بدن څواک له لاسه ورکوي او د ټولنې د اوږو بار وي؟

• د اسلام سپیڅلي دین د څه لپاره نشه یي توکې منع کړې دي؟

• که ستاسو په کلي کې څوک نشه یي وي، له هغه سره به څنگه چلند وکړئ؟ خبرې پرې وکړئ.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپل کور، کلي او سیمه کې له مشرانو څخه د نشې د زیانونو په اړه پوښتنې وکړي او بیا دې راټول کړي معلومات د بلې ورځې په درسي ساعت کې خپلو ټولگیوالو ته ووایي.

## وییپانګه



((الف))

**امین:** امانت دار- د باور وړ

**ادنا:** عادي

**ارزونه:** ارزيابي

**ارزښتناک:** ارزښت لرونکی، مهم، اهمیت لرونکی

**اړ ایستل:** مجبورول، مکلف ګرځول

**استوګن:** اوسیدونکي، میشته

**اقتضا:** غوښتنه

**امان:** امن

**امن:** سوله، امنیت

**انجمن:** ټولنه

انکشاف: پراختیا

**انځورګر:** رسام، نقاش

**اوسط:** منځنی

**اړ:** محتاج

**اړتیا:** ضرورت

((ب))

**بد مرغي:** بد بختي

برخمن: برخه لرونکی، ونډه وال، شریک

**برید:** حمله، تیری

**بسیا:** خود کفا، اړتیا رفع کېدل

**بلنه:** دعوت

**بنسټ:** بنیاد، اساس

**بهرنیان:** خارجیان

**بهیر:** جریان، مسیر

**بوستان:** بڼ، باغ

**بوټی:** نبات

**بې لاري:** ګمراهي

بې وزلي: بیچاره ګي، غربت

**بیلګه:** نمونه، مثال

**بډای:** غني، پانګه وال، شتمن

**بڼ:** باغ

**بڼه:** څېره، قواره

((پ))

**پاملرنه:** توجه، پام

**پرېکړه:** فیصله

**پسته ژبه:** نرمه وینا

**پلوشې:**وړانګې

**پوله:** سرحد

**پوځ:** اردو، عسکر، لښکر

**پوړ:** طبقه، منزل

**پیاوړی:** قوي، ځواکمن

**پیړۍ:** قرن

**پټۍ:** پر ټپ د درملو ایښودل

**پښت:** توکم، نسل

((ت))

**تپه تیاره:** ډېر تورتم

**تثبیت:** ثبت شوی، لیکل شوی، معلوم شوی.

**ترکاڼ:** نجار

**تضمین:** ضمانت شوی

**توپیر:** فرق

**توغندی:** میزایل، وژونکې او ورانوونکې وسیله ده

((ټ))

**ټاټوبی:** هېواد، وطن، استوګنځی

**ټپي:** زخمي
**ټغر:** گليم، يو ډول فرش
((ث))
**ثمر:** مېوه، لاس ته راغلی حاصل
((ج))
**جاهل:** نا پوه
**جلگې:** چمن، شين او سمسور ځای
**جهالت:** نا پوهي، نا داني
**جونگړه:** د استوگنی ځای، ځپره، خيمه، کېږدۍ
**جوگه:** وړتيا لرل، مستحق
((ځ))
**ځاله:** د الوتونکو استوگنځی، آشيانه
**ځواک:** توان، قدرت، قوت
**ځوانيمرگ:** په ځوانی کې مړ
((چ))
**چاپېريال:** محيط، شاو خوا
((څ))
**څارل:** تعقيبول، نظارت کول
**څاروي:** حيوانات، ژوي
**څانگې:** ښاخونه
**څاڅکی:** قطره
**څرگند:** ښکاره، معلوم
**څېره:** ظاهري بڼه، قواره
**څښناک:** د څښلو وړ شيان
((ح))
**حال:** اوس
**حد:** اندازه
**حرمت:** عزت، درناوی
**حمد:** د خدای تعالیﷻ ثنا او صفت
((خ))
**خالق:** پيدا کوونکی
**خپلواکي:** آزادي
**ختيځه:** شرقي
**خرافات:** نا مشروع او ناروا چارې
خواشيني: خپگان
((د))
**درشل:** دروازه، در بار
**درملنه:** تدواي، معالجه
**دمع:** اوښکې
**دوه مخي:** دوه رنگي
**ديوان:** د شعرونو مجموعه- دفتر
((ډ))
**ډاډه:** مطمئن
**ډله:** گروپ
((ر))
**رغونه:** ابادي، اعمار
**روغبړ:** هر کلی، ستړي مشي
**روږدی:** معتاد، عادت
**رټلی:** شړلی
**رنې:** پاکې
((ړ))
**ړنگ:** ويجاړ، وران
**ړوند:** نابينا
((ز))
**زگيروي:** له درده فرياد کول، آه ايستل
**زغم:** تحمل، صبر
**زيار:** زحمت، کوښښ
**زيان:** نقصان، تاوان
زيرمې: منابع، ذخيرې
((ژ))
**ژباړه:** ترجمه

**ژغورل**: ساتل، نجات ورکول

**ژمنه**: وعده

**ژوبلیدل**: زخمي کېدل، ټپي کېدل

**ژوره**: کنده، ژور ځای، ښکته برخه

((س))

**سا**: روح

**سابه**: سبزي، يو ډول خواړه

**ساری**: مثال، سیال

**ستایل**: ستاینه کول، صفت کول

**ستونزې**: مشکلات

**سر تېري**: عسکر، پوځي افراد

**سرلیک**: عنوان

**سلوک**: رویه، چلند، روش

**سملاسي**: سمد لاسه، فوري

**سمڅې**: غارونه، په غرونو کې لوي سوري او سوړې

**سندره**: بدله، غزل، اهنگ

**سوبه**: فتحه، بری

**سوکالي**: آرامي، هوساینه

**سوله**: روغه جوړه، امن

**سویلي**: جنوبي

**سیال**: ساری- برابر

**سیرت**: اخلاق

((ش))

**شپانه توبک**: د رمې او یا نورو څارویو پیول

**شخړه**: جګړه، لانجه

**شِرک**: له خدای(ج) سره بل سیال پیدا کول

**شفاهي بڼه**: نا لیکلی، په خولې ویل

**شیبې**: لحظې

**شړومبې**: تروې، دوغ

((ښ))

**ښیرازي**: سمسورتیا، آبادي

((ع))

**عالي**: لوړ

**عالیشان**: د لوړې دبدبې او پرتم خاوند

**عزم**: هوډ، کلکه اراده

**عنایت**: مهرباني، لورینه

((غ))

**غشی**: تیر، په لیندۍ کې د ویشتلو لپاره د ګوزار وسیله

**غندل**: بد ویل، تقبیح کول

**غوره**: ښه- ګټور

**غوندې**: په څیر، په رنګ، په ډول

**غړي**: د بدن اندامونه، اعضاوې

**غړیتوب**: عضویت

((ف))

**فرهنګیال**: د فرهنګ خدمتګار

**فیوضات**: برکتونه، د فیض جمع

((ک))

**کار پوه**: متخصص

**کارول**: استفاده کول

**کرکه**: کینه، نفرت

**کرم**: بخشش، ورکړه

**کودتا**: د پوځ په وسیله د رژیم یا نظام را نسکورول، دپوځي کودتا له لارې واک اخیستل

**کوډله**: څپره، د لوخو کپه، جونګړه

**کیمیاګر**: د کیمیا وي موادو جوړونکی، هغه څوک چې طلا جوړوي

**کیږدۍ**: غژدي

((گ))

**گاونډی:** همسایه

**ګواښ:** تهدید، له خطر سره مخامخ

**ګومارل:** توظیفول

((ل))

**لاملونه:** سببونه، علتونه

**لذت:** خوند

**لرغونی:** پخوانی، قدیمي

**لمبې:** د اور د شغلې لوړېدل او څپانده کېدل، شغلې

**لوپټه:** څروکی، ټیکری، پړونی

**لوېديځ:** غرب، د غرب خوا ته

**لګښت:** مصرف

((م))

**ماضي:** تېر وخت

**ماڼۍ:** ودانی، تعمیر

**محبت:** مینه، عشق

**مرستندوی:** کمک کوونکی، کومکي

**مرستيال:** معاون

**مستقبل:** راتلونکی

**مسيحا:** حضرت عیسی علیه‌السلام

**مصیبت:** غم، ناورین

**معاصر:** اوسنی

**معبوث:** پیغمبر کیدل

**مغفرت:** ببښنه

**مهال:** وخت

**موخه:** هدف

**موسکا:** په شونډو کې نرۍ خندا، تبسم

**میرمن:** واده شوې ښځه

((ن))

**نا چاود:** چې چاودلی نه وي، منفلق شوی نه وي

**نا ستوماني:** نه ستړيا، نه ستړی کیدونکی

**نازولی:** په ناز او نعمت کې لوی شوی

**نصیب:** برخه، قسمت

**نعت:** د پیغمبر ﷺ ستاینه

**نمانځل:** عبادت کول

**ننګیالی:** د ننګ او غیرت څښتن، زړور

**ننګه:** ملاتړ، حمایت

**نوراني:** روښانه، روڼ، ځلاند

**نښه:** علامه

((هـ))

**هلې ځلې:** هڅه، کوښښ، زیار

**هنداره:** آینه

**هوسۍ:** آهو

**هوډ:** عزم، اراده

**هیله:** آرزو، توقع، امید، خواهش

**هیواد پال:** وطن پال، پر هیواد مین

**هڅول:** تشویقول

((و))

**وحدت:** یو والی

**وداني:** آبادي، تعمیر

**ورانول:** ړنګول، ویجاړول

**ورین تندی:** پراخه تنده

**ولس:** خلک

**ونډه:** برخه، سهم

**ویاړ:** افتخار

**ویجاړ:** وران

**وګړي:** خلک

((ی))

**یرغلګر:** تیری کوونکی

# اخځلیکونه:

١ـ خواږه نعتونه، فقیر محمد عباس قادریه، پیښور چاپ.
٢ـ د پښتني قبیلو جزایي، حقوقي اصلاحي قاموس، محمد ابراهیم عطایي، د افغانستان علومو اکاډمي د پښتو څیړنو نړیوال مرکز.
٣ـ پښتني لاربنود، پوهاند صدیق الله رښتین، یونیورسټي بک ایجنسي پیښور.
٤ـ د پښتو ژبې لنډ ګرامر، محقق سید محی الدین هاشمي، د اریک ګرځند کتابتونو اداره.
٥ـ اریانا دایرة المعارف، دویم چاپ، د افغانستان د علومو اکاډمي.
٦ـ ګیتانجلي، عبدالرؤف بینوا، پوهاند عبدالشکور رشاد په سریزه، دریم چاپ.
٧ـ له تنباکو تر هیروینو پورې، سرمحقق نعمت الله اندړ، د اریک د ګرځنده خپرونو اداره.
٨ـ په افغانستان کې د ژوند د چاپېریال ساتنه، پوهاند داکتر حسن یار، د اریک د ګرځنده کتابونو اداره.
٩ـ فرهنګ ادبیات جهان، زهرا خانلري، شرکت انتشارات خوارزمي، ایران.
١٠ـ د بشر د حقوقو د نړیوالې اعلامیې د اصلاحاتو تشریح، ملک ستیز، د هاشمي ژباړه، د بشر حقوقو او مدني ټولنې شبکه، کابل.
١١ـ د افغانستان مشاهیر، محقق سید محی الدین هاشمي، د اریک د ګرځنده کتابتونو اداره، پېښور.
١٢ـ په افغانستان کې لرغونې کلاګانې، پوهاند رازقي نړیوال، کابل.
١٣ـ پټه خزانه، محمد هوتک، د پوهنې وزارت، کابل.
١٤ـ د افغانستان د ولایتونو جغرافیه، پوهاند غلام جیلاني عارض، د اریک د ګرځنده کتابونو اداره، پېښور.
١٥ـ اریانا دایرة المعارف، څلورم ټوک، اریانا دایرة المعارف ټولنه، کابل.
١٦ـ د صدر خوشحال ژوند او اثار، زرین انځور، پښتو اکاډمي، پېښور.
١٧ـ د پښتو ادبیاتو تاریخ (لرغونې او منځنۍ دوره) سرمحقق زلمی هېواد مل، دانش خپرندویه ټولنه، پېښور.
١٨ـ زاهد پښتو- پښتو سیند، عبدالقیوم زاهد مشواڼی، دانش خپرندویه ټولنه.
١٩ـ فرهنګ تشریحي، داکتر حسن انوري، کتابخانه ملي ایران.
٢٠ـ اوسني لیکوال، عبدالرؤوف بېنوا (١ـ ٣) ټوکه.